# فهرست

شمېر سرليك مخ

# داسلام ملت ته

اې چې پاك الله کړې غوره، د قامو يې سر تمام کړې
ځومرې دروند کړې د زړه سره!، هرآغاز ته يې انجام کړې
اې هغه چې ستا سپېڅلي[1]، انبياء غوندي ستايلي
خپلي ينبي چې يې دي سوي، هغو زړونه ور وستلي
تا نظر غشي ته نخبنه، د ترسا[2] د بنايست کښېښوه
دا په کومو کندو سر شوې، د کعبې لار خو دي پرېښوه
اې چې ستا د کوڅې خاورې، پورته والوتې آسمان شو
"اې چې مخ د تماشو ستا، تماشه د ټول جهان شوه"
اور په ښنو کښې زغلي- زغلي، لکه موج چې په لړزان يې
"تماشې چې دا ته کوم خوا، تماشو پسې روان يې"
د پتنګ تر څنګه کښېنه، سوځېدل زده کړه په اور بيا
سرو لمبو کښې رده کښېږده، او ودان کړه ځان ته کور بيا
راشه سر يې داسي کښېږده، تاؤ د عشق کړه د تن تبه
لېونی د مصطفیρ شه، کړه تازه ورسره ژبه
ما چې ستا مخ دی ليدلی، يم مين له هغه راسي
زړه مي مور دی له ترسانه، هم د ده له ناستې پاستې

(1) پاكان.
(2) آتش پرست كافر.

هم نواوو ته زهير يم، چي پردي مخونه ستاېي
خال و سترګې كله ژبه، كله سترګې وربل واى
د ساقي پر درشل رغړي، پر تندي سولوي مړي
د ګل مخو شراب ستاېي، لكه وي د شارې ترږي
زه خو ستا په نظر غشي، شهيد شوى يم كه واورې
ښايستونه دي نور ورك شي، زه يم ستا د كوڅې خاورې
زه له دې مقامه تېر يم، نه ستايل راځنې كيږي
زما سر خو بې له خدايهΨ، بل هيڅ چاته نه ټيټيږي
جوړوم له ويناګانو، زه هينداري* د زړه سره!
په خپل كار كښې داسي ورك يم، بې پروا له سكندره
څټ او سر مي زغمي چرته، پېټې دروند د احسانونو
غوټۍ غوندي لمن نغښتې ،ګرځم اې د باغ ګلونو
هيڅ مه وايه خورا✉ كلك يم، لكه توره په جهان كښې
له پردي كاڼي ميندلى، ماكلكوالى دى په ځان كښې
بحر يم ولې موجونه، و زما بې تابه مه شه
نه په لاس كښې مي كاسه ده، د غليو غوندي تشه
زه پرده لكه د رن-ګ يم، څه وږمه د ګل خو نه يم

---

* آئينه
✉ ډېر

چې په کومه مخه باد ځي، ورپسې به ګني زه يم
دا دنيا که سور تنور دی، يم سکروټه پکښې ننه
سور منډوس مي پر سر وينې، دا مي دی له خپل خوړلنه
ما راوړې ستا کوڅې ته، عاجزي او ډېر نيازونه
سوځېدل، ويلې کېدل دي، دا سوغات هم آوازونه
بر آسمان لکه په سپند وي، دی را اوري پر سر باندي
په دې سوي زړه مي هر دم، راڅڅيږي زه ور لاندي
سپند را غونډ کړمه په زړه کښې، بيا له سترګو يې واله کړم
وترم ورته ورخونه، چې دا ستا چمن اوبۀ کړم
دا کړم ځکه چې ته غور يې، او ډېر خوښ مي د دلبر يې
نو زما د سترګو تور يې، هم زما د زړګي سر يې
عشق رده د فغان کښېښوه، ورته يې ځای زما سينه کړه
د دې اور اثر خو ګوره، زړه مي يې پاکه آئينه کړه
لکه ګل مي سينه يوړه، څيرې۔ څيرې کاره۔ کاره
چې په مخکښې درته کښېږدم، د کتلو دا هينداره
چې ځان و وينې شيدا شې، چې ورک شوی راپيدا شې
چې خپل حسن درته دام شي، چې مرغی په دام کښې راشې
هله کړم به را د سره، ستا زړې قيصې خبرې
په سينه به دي تازه کړم، بيا داغونه که پرورې

چي له ځانه خبر نه دی، ما د هغه قام دپاره
محکم در له خدایه و غوښت، په زارو په ناقراره
په چپتیا د نیمو شپو کښې، ناقرار به په ژړا وم
نور به ټول خلك ویده وو، زه به ویښ په واویلا وم
نه مي صبر، نه سکون ؤ، پرقېدم د بت نینه وم
په خوله حي یا قیوم او، اوښکې تلې لکه چینه وم
لکه زړه د ارمان غوټه، ما خوره کړه وینې وینې
بیا د سترګو په کوڅه کښې، ما رخصت کړې اوښکې سپینې
شپه او ورځ د رېدي غوندي، سوځېدل چي به ترڅو وي
له سحره پرخې غوارم، دا غوښتل چي به ترڅو وي
لکه شمع په ژړا یم، په تن اوښکې رغړومه
له تیارو سره لګیا یم، اوږدې شپې به رڼومه
رڼاګانې مي کړې زیاتې، زه که کم شوم ځان مي سود کړو
ما آباده کړه دا غوندۀ، ما محفل د نورو تود کړو
فرصت نه مومم له سوزه، پروت دی اور سینه وریته کښې
ادینه چرې را نغله، د ژوندون یوه هفته کښې
د هډونو په پنجره کښې، زما روح دی سولېدلی
که ځلنده اسویلی دی، په لوخړو کښې نغښتلی
زه چي پاك الله پیدا کړم، د ازل په سحر پار کښې

ناقراري مي شوې چيغې، د رباب په هر يو تار کښې
د عشق راز ښکاره کونکي، بې مثاله د زور چيغې
د وينا د آرمانونو، خون بها لکه اور چيغې
د خشاك فطرت د ارو کا، د تاوونو له اثره
توري خاوري پتنګ خوی که، بې پرواه له سروزره
عشق نورڅه غواړي له خدايه، په سينه يې د رېدي داغ دی
د ګرېوان به يې څه وايې، له ژړا د ګلو باغ دی
اوس يو دغسي ګل تانه، په پټکي کښې بړدم عزت زه
په بې سولو په اوه وستا، جوړومه يو قيامت زه
چي له خاورو دي تل، تل شي، د رېديو انګارونه
چي ساګانې دي خورې شي، په دنيا کښې بهارونه

%%%

# دپښتورموز

## تمهيد

## دفرداوملت ګډون

که يو تن لره رحمت دی، نو ګډون د جماعت دی
وجوهر ي-ې کمال مومي، څوك چي غړی د ملت دی

یو دی خدای ښه، چي توانیږي، جماعت سره مل اوسه
که احرار دي غښتی پړی، په دا پړي کښې ول اوسه
پیغمبرρ دي فرمایلي*، چي شیطان له ډلي بیل دی
په پښتو کښې هم متل دی، چي بې ډلي سړی غل دی
د یو بل دوه آئینې دي، فرد او قام څه نه دی لرې
لکه ستوری آسمان* لار دي، لا دي تار او مرغلرې
په ملت کښې چي ورګډ شي، مېړه✉ مومي احترام
له مېړونو غونډېدلو، ملت وه مومي نظام
که یو تن پکښې ځان ورك کا، د ملت غونډي ته ورشي
په طلب د لوېدو کښې، وي یو څاڅکی سمندر شي
مړه خواشي سړه خواشي، د زاړه سیرت په پنګه
تېر او وړاند ژوندانه ته، آئینه شي په شا زنګه
د راتلونکي او تېر وخت، یو کوونکی د ده ذات شي
د ابد غوندي بې سره، نامعلوم د ده اوقات شي

---

* علیکم باالجماعة فانه من شذ شذ فی النار، ژباړه: څوك چي له جماعته بیل شو هغه جهنم ته ولاړ، په دې حقله د حضرت عمرτ قول هم دی، لااسلام الا باالجماعة، ژباړه: بې جماعته اسلام څه اسلام نه دی.

ولاتفرقوا الله اکبر وایي
بې ډلي دوزخي دی پیغمبر وایي
اسلام بې جماعته څه اسلام نه دی
نه وایي سمندر حضرت عمر وایي

*کهکشان

✉ فرد

زړه کښې شوق د ډېرېدلو، خو رېدلو له ملته
د عمل حساب يې کيږي، د ملت له برکته
که قام نه وي دی به نه وي، چې دی نه وي ساه به يې نه وي
که ښکاره دی که څه پټ دی، چې قام نه وي دا به نه وي
قام د ده شي لکه ژبه، په زبان د قام ويل کړي
چې پر تللي مشران دي، دی پر هغه لاره تلل کړي
د صحبت له تاوه پوخ شي، لکه لوښی تنګېدلی
دا يو تن لکه ملت شي، د معنا تلی تللی
شي* يوتيا د ده محکمه، دا د ګڼې برکت دی
او دا ګڼه يې په يوتيا کښې، د يوتيا غونډي صورت دی
که د بيت نه بهر وزي، شي يو لفظ يوې خواته
مرغلره د مضمون وه، په سپي کښې شوله ماته
تکه شنه او تانده پاڼه، که له ونې پرېوتله
که سپرلی پر ورېدلو، نو هم شوه خاوره خزله
د ملت اوبه زمزم چې، يې د مرئ نه کښته نه شي
د هغه د ساز په بړغ کښې، د لمبو تاوونه مړه شي
فرد يوائې بې مقصد دی، نه د تلو نه درېدو دی

* د دې شعر به لفظ په لفظ ترجمه داسي ښه وي:
مستقيم د ده وحدت له کبله د کثرت دی
او کثرت يې په وحدت کښې چي ورګډ شي نو وحدت دی

شته قوت یې شته په تن کښې، ولې مخ په خورېدو دی
قام سرې په سرېتوب کړي، د قانون سره یې آشنا کړي
په قراره هوار درومي، لکه باد یې د صبا کړي
پښې د مځکې پر دې خاورو، سم یې نیغ لکه نښتر کړي
ځکه یې وترې پښې لاس چې، صحي آزادي ورکړي
چې بندي د یو قانون شي، بهر نه وي له آئینه[*]
وي هوسۍ د ترپو دانګو، مشک یې شي په نوم کښې وینه
تا خودي له بېخودۍ نه، آشنا وه نه پېژندله
زغلوې ته ګومانونه، واوره- واوره د سر ګله
یو جوهر د نور اوسیږي، ستا په خاوره کښې دننه
د هغه د پلوشې نه، ستا ادراک کړي ځلېدنه
د هغه له غمه غم ستا، په ښادۍ کښې ستا ښادي ده
د هر دم د انقلابه، یې ستا ژوندون او آبادي ده
یو دی نه زغمي دوه والی، که ی-ې له حاله خبر نه یې
ځکه یې زه رڼا ته زه یم، ته ی-ې د نور په مخکښې ته یې
ځان ته زه وایې خوددار دی، ځان مین د ځان پالونکی
دی په نیاز او عاجزۍ کښې، د نازونو دی ساتونکی

[*]**آزاده ترجمه یې داسي هم ښۀ ده:**
چې پابند د یو نظام شي، چې بندي د یو قانون شي
پښتون هله مسلمان شي مسلمان هله پښتون شي

شته د ده دومره تاوونه، چي زور وکړي نو اور وکړي
په لمبه کمند ګوزار کا، دغه سپن کښې چي زور وکړي
که په تن کښې بندیوان دی، خو آزاد د ده فطرت دی
تا ووي منګل د کل نه، په دې جز کښې ډېر قوت دی
روږد د پرله پسې جن-ګ دی، تل په ګواښ کښې اخلي خوند
یو دی دوه لري نومونه، یو خودي او بل یې ژوند
چي ځان وباسي بهر ته، پاتې نه شي په خلوت کښې
پښې اوږدې کړي هنګامې ته، دی ورګډ شي په جلوت کښې
نو په خونه د زړګي کښې، نقش ګیر "هغه" د ده شي
ځان ته زه یې له فکره ووځي، هغه "زه" له سره "ته" شي
جبر واخلي تر اختیار نوږ، له هر څه نه کنګال شي
چي یې ګورې سر تر سره، بس د مینې پنګه وال شي
ناز چي څو پوري هم ناز وي، کم نیازونه پیدا کیږي
چي نازونه سره یو شي، سم نیازونه پیدا کیږي
ځان کړي ورک په جماعت کښې، خودي وه دانګي له سره
نو د ګل له یوې پاڼې، چمن جوړ شي ښایسته غوره
د فولادو تېرې توري، دي زما نکتې خبرې
که پر نه یې پوهېدلې، زه له مخې مي شه لرې

%%%

# ډېر مېړونه په راغونديدو

## ملت شي او د هغه کامل تربيت له نبوت شي

چي ګډون د بنيادمو، څنګه وشو او له څه نه
دا قيصه ډېره اوږده ده، په تياره کښې سر دننه
يو مېږه چي موږه وينو، په ملت کښې ځکه ښاد دی
لکه ګل په ګلستان کښې، له کيله د قام ياد دی
دی فطرت د ده بس داسي، د يو والي مخ ته رغړي
حفاظت يې دی په دې کښې، چي ښايست شي د وګړي
د ژوندون پر لويه لاره، ځي روان دی په غورځنګ
سرې لمبې د اور تر تاؤ دي، د ژوندون د تاوده جن-ګ
مېړني مېړونه هغه، چي ډېر غونډ په يوه لار شي
يو تر بله ور تر خوا شي، مرغلرې د يو تار شي
په تود جن-ګ د ژوندانه کښې، ټول يوه پوره لښکر شي
که تا بيا کول که کار وي، پر راسر لکه اشر شي
هريو ځان ته بل را کاږي، نه دي کم له ستوري ستورى
څه ښايسته محفل يې تود دی، دی محکم له ستوري ستورى
دا بانډه چي د کاروان ده، دا د غرونو د راغونو
دا د لومو صحراګانو، ځنګلونو د باغونو

دا بې ځانه سسته پسته، لکه ورانه تنسه وي
لا غوټۍ د دې د پوهې، پټه خوله غلې پرته وي
تندر برغې ساز يې چپ وي، دی لا نه وي برغېدلی
لا د سوي نغمو تاؤ يې، له پرده نه وي ختلی
نه په څېر د جستجو وي، لا د ده اواز ختلی
لا تارونه د ده نه وي، د آرمان شاباز خوړلی
د دې نوې جوړې غوندي، شرابيان هسې کم آب وي
په لانبه را اخستی شي، ايله دومره يې شراب وي
شنه وي اوس زرغونه شوي، نوي۔ نوي له دې خاورې
په رګونو کښې د کور* يې، وينه وي لا يخې واورې
د پېريانو د دېوانو، تل له ويري کړي خبرې
د خپل ځان له پېژندلو، مدام اوسي لرې۔ لرې
لا ميدان يې تن-ګ وړوکی، وي هستي يې کچه خامه
هم يې فکر وي لاځوړند، ډېر لا کښته وي له بامه
ويره يې وي په زړه کښې ناسته، له هرڅه او له هرچا نه
له هر خوا له هرې مخې، له توند باد او له بارانه
په شا تښتي کوي ډډه، له سختۍ سعي محنته
لاس نه اچوي لمن ته، نه يې راکاږي له فطرته

* انګور

چي په خپله زرغونيږي، هغه اخلي بد که ښه وي
له آسمانه چي را پرېوځي، هغه اخلي چي هر څه✉ وي
خدای په دغه وخت کښې داسي، يو صاحب د زړه پيدا کړي
چي هغه له يوه توري*، دفترونه را املا کړي
ساز نواز✍ له اوازې نه، را پيدا کړي داسي خوند
چي کړي ويښې ويدې، خاورې ورته ورکړي نوی ژوند
ذرې واخلي رڼاګاني، له غه بې مثاله لمره
د هر څيز قيمت و خيزي، چي يې شي ښه له ښه اثره
په يو دم يې سل ژوندي شي، پکښې ساه وکاندي منډه
د يوې پيالې له رنګه، کړي رنګينه ټوله غونډه
د واړه سترګې يې وژل کا، چي دوه والی مړ فنا شي
په ويلو ساه پوکل کا، چي يو والی را پيدا شي
د تار سر يې په آسمان وي، هغه تار چي پر ګنډل شي
چي ټکړه- ټکړه ژوندون، پر غونډول پيوندول شي
نوې غونډيو انداز دی، را پيدا کړی په نظر کښې
آبادي د ګلستان کړي، هم په سمه هم په غر کښې

---

✉ **دا ترجمه اولسي محاورې ته نوره نزدې ده:**
همت نکړي خو هغه خوري چي پخپله زرغونه وي
کټوری غواړي له زانو که وي وي که نه وي نه وي

* **حرف.**

✍ د موسيقي په اصطلاح کښې هغه راګ ته وايي چي په ساز کښې له دوه مقامو ترکيب مومي، دا تلميح ده له دين او دنيا څنې.

نو ملت د ده له تاوه، نا قراره سپېلنی شي
د ټوپونو د شورونو، د دوونو لېونی شي
د ملت په زړه کښې ننه، دی يو سپڼکی ورګوزار کړي
دا دلۍ د تورو خاورو، سرې لمبې په غرهار کړي
چي هر چرته قدم کښېږدي، د ده پل خاورې بينا کړي
ورته دومره رڼا ورکړي، ذره سيا له د سينا کړي
لغړتوب د عقل پټ کړي، په ښايست او په ښه رنګه
دا ناچاره موږ او پټ کړي، د ښايست په ډېره پنګه
هم سکروټو ته يې کښېني، ورته ووهي لمنه
زر يې وباسي له اوره، که وي کوټ پکښې دننه
بند پر بند وي پښې تړلې، پړی پرانيزي هرچا ته
د خدايانو له کوڅو نه، بنده بوزي سمې خوا ته
ورته وواېي په جار دا، چي بنده د بنده نه وي
دا چي تا ورته سر ايښی، لکه دوی دي هسي ته يې
د قانون پړی په پښه کښې، مدعا ته يې راکاږي
چي يې وه رسوي ځای ته، هغه خوا ته يې راکاږي
بيا ي-ې پوهه په توحيد کړي، دا نکته ورباندي سود کا
هم ي-ې پوه په عاجزو کړي، هم يې پوه د نياز په دود کا

%%%

# د اسلام د ملت بنيادي ستنې

## لومړۍ ستن

## ((توحيد))

په جهان د څنګه* څو کښې، عقل ډېر و ګرځېدلو
له منزل وه لرې پاتې، خو توحيد و رسولو
ګني لار ده ناچاره، تر منزل وه لاره چرته
د ادراك ورکي بېړۍ نه، ده موندله غاړه چرته
ياده کړه د خدای دوستانو، د توحيد د رمز خبره
د "اٰتى الرحمٰن عبدا✉"، په سپيڅې کښې مرغلره
چي ي-ې تاته در ښکاره کړي، ډېر رازونه شته په تا کښې
د عمل دنيا ته راشه، امتحان يې دی په دا کښې
هر څه دي له دغه رمزه، دين آئين او که حکمت دی
که لوېي که مرتبه ده، يا که زور او که قوت دی
چي جلوه يې ورښکاره شي، عالمان ګوته په خوله کړي
عاشقان له سره تېر کړي، د عمل ميدان ته تله کړي

* کيف و کم.
✉ ان کل من فى السمٰوٰت والارض الا اٰتى الرحمٰن عبدًا، (قرآن سورت مريم)
ژباړه: په آسمانو او مځکه کښې چي څومره مخلوق دی، ټول به د الله تعالى په حضور کښې په حالت د بندګۍ پېښ کيږي.

چي پر چا ي-ې سيورى وشي، که پرېوتى وي اوچت شي
خاورې هم لکه اکسير کړي، زيات يې قدر او قيمت شي
لاس يې رسي چي کول کړي، د بنده شان يو په سل کړي
بنده هغه بنده نه وي، په خوبيو يې بيا څه بل کړي
بيا د حق پر لار شي توند، لکه تندر شي په ت-ک کښېږ
لکه برېښ د آسمان زغلي، توده وينه يې په رګ رګ کښېږ
عمل ومومي ژوندون، او شک ؤ ويره دوارې مړه شي
ستر ګې هم په حال خبرې، د عالم دننه زړه شي
چي بنده د خداى بنده شي، او مقام د ده محکم شي
که کچکول وي د سوالګري، په خوبيو جام د جم شي
دا ملت لکه يو تن دى، پکښې ساه د لااله ده
د دې ساز پرده څيړونکې، زخمه* دا د لااله ده
لااله مي د رازونو، خزانه هم دروازه ده
په دې تار زمور ګنډلي، د فکرونو شيرازه ده
دغه توري دي په خوله کښې، چي لږ شي ورکښته زړه ته
يو په شل نه يو په سل کړي، قوتونه ژوندانه ته
دا که ليک شي پر شنه کاڼي، ګټ به شي لکه زړه ښاد
هغه زړه شو توري خاورې، چي وه نسوه د دې ياد

* شهباز.

چي د دې د غم له اوره، دا خپل زړونه کړل روښان موږ
په يو اُف د جهان درمن، د ايرو کړلو ډيران موږ
اوبو غوندي نري زړونه، څه زموږ سينې چينې کړې؟
تاؤ د لاالٰه مي ويلي، دا دننه آئينې کړې
د رېدي غوندي چي موږه، شو تك سره د دې له اوره
بې له دغه يوه داغه، پنگه نشته زموږ نوره
د توحيد له برکته، زموږ تور لکه سور گل شي
د عمرτ د زړگي سر شي، د بوذرτ هم لکه خپل شي
د پردو هم خپلو مينه، ده په زړه کښې د ساتلو
شوق خو هله مستي مومي، چي جام يو وي د نوشلو
په يو رن-ك کښې زړونه رن-ك شي، بيا رمه نه ده ملت دى
له يوې جلوې ميندلى، دغه غر دى طور رڼا عزت دى
قام فکرونو ته يو بويه، يوه خوله يوه خبره
په يو زړه۔ زړه سيپي کښې، يو مقصد وي مرغلره
چي جذبه د دوى يوه وي، د يو تن هم بېله نه وي
بد د ټولو په خوله بد وي، ښه د ټولو په خوله ښه وي
سوز د حق چي پکښې نه وي، ساز د فکر نو غوغا ده
طريقه د داسي فکر، بې امکانه ده خطا ده
موږ ځايي مسلمانان يو، پلار زموږ د خداى خليلυ دى

"ابيكم"[✉] دی له قرآنه، كه يې غوارې دا دليل دی
امتونو خو ترلی، په وطن پوري تقدير دی
په نسب يې رده ايښي، درولی يې تعمير دی
ګني اصل د ملت نو، له وطنه دی څه ناورې
ګني تش و پرستش دی، د اوبو او باد او خاورې؟
ناپوهي ده ناپوهي ده، په نسب به فخر ويار لا څه وي
چې نسب خو دی له تنه، تن نن وي او صبا نه وي
اې زموږه د ملت خو، رده بله بنياد بل دی
چې په زړه کښې ده زموږه، له هغې ځنې مراد بل دی
يو حاضر زموږه زړونه، په غائب پوري ترلي
نه مو دا جهان په كار دی، نه مو هغه پسي ژړلي
د دې قام رشته يوه ده، سره دي خپلو كښې ستوري
خو نظر غوندي نه ښكاري، كه زموږه ستركې ګوري
د تېرو توبريو غشي، د يو خال د يو كمان موږ
په يو شان د يوې مخي، د يو فكر يو زبان موږ
بس يوه مو مدعا ده، يوه لار او يو يې سر دی
يو مو خيال او يو مو دود دی، ډېر سرونه يو يو ور دی
د هغه له نعمتونو موږه، يو په بل قربان شو

---

✉ ملة ابيكم ابراهيم. ژباړه: دا دين ستاسو د پلار ابراهيم دی.

# ناامیدي، غم او وېره ژوند تباه کوي
# او توحید د دې خونړو رنځونو ورکول کوي

چې ارمان په زړه کښې نه وي، مرګ دی دغه نشت بېشکه
د لا تقنطوا[✉] قوت دی، چې د ژوند رده کړي کلکه
ارمان پرله پسې بویه، دا امید و د سړي شي
نومیدي خو ژوندانه ته، لکه زهر خونړي شي
ناامیدي توره بلاده، لکه ګور نچوړول کا
که هر څو د مورې[*] غر يې، دا له پښې ځنې راکښل کا
ناتواني ده د دې وینځه، شا مدام په غم لړلې
هم د دې په لمن پورې، نامرادي ده تل تړلې
مایوسي ژوندون ته واي، "الله هو" د خوب بړغونه
سستوي د عناصرو، پټې پلې او هم رګونه
د روح سترګې ړندول کا، رانجه نه کړې د دې پورې
که ژوندون وي سپینې ورځې، داېې شپې کړي تکې تورې
چې یو دم پر دا ورکف کړي، قوتونه د ژوند مړه کړي

[✉] لا تقنطوا من رحمة الله. (قرآن) ژباړه: د الله له رحمت ځنې مه ناامیده کیږئ.
[*] په اصل کښې دا لوند غر دی، خو ما د خپل وطن غر ولیکلو، چې ذهن ته زر پرېوزي، خبره یوه ده څه الوند غر او څه موره غر.

د ژوندون چينې کړي وچې، ډېر لا نور هم هسې کړه کړي
دا د غم سره ويده ده، د يوه څادر د لاندي
که ژوندون دی له شارګه، غمِ نشتر دی په رګ باندي
اې د غم په بند کښې بنده، اې د غم تر لاسه خواره
لا تحزن* دي ولې هېر کړو، تعليم وکړه له سرداره
دې سبق صديق۔ صديق کړو، له زړګي يې غم شو لري
دا پياله چې يې خولې ته يووړه، غم ؤ زيات که کم شو لري
مسلمان رضا اوچت کړي، لکه ستوری ځلېدلی
د ژوندون په ګرانه لار ځي، مسکېدلی۔ مسکېدلی
که په خدای دي پوخ يقين وي، نو د غم نه آزاد اوسه
وران او سم نه آزاد اوسه، زمات او کم نه آزاد اوسه
د ژوند مزی به دي اوږد کا، د ايمان قوت کښې دا شته
لا خوف عليهم* وايه، چې دي څو په تن کښې ساه شته

---

* د هجرت مشهوره واقعه ده، چې دوست د خدایρ او حضرت صديقτ د هجرت په ورځ څه مزل وکړو، نو په ثور نومي غار کښې کښېناستل، چې دمه وکړي، او په دې هم پوه شي، چې کفار ورپسې دي او که نه؟ آخر کفار ورپسې ورسېدل، چا نخښې ورکړې، چې هم دلته وو، په سوونو خلـګ خواره شول، آ خوا دېخوا، په کنده کښې، په سمه کښې، په غار کښې په اړخ کښې هر خوا ته يې کتل نو د حضرت صديقτ زړه لاندي باندي شو، عرض يې وکړو، چې يا رسول الله! دښمنان خو راغلل، اوس به څه شي، حضورρ ورته و فرمايل: "لاتحزن ان الله معنا، ژباړه: مه وېرېږه غم مکوه، زموږ خدای راسره دی، د حضرت صديقτ زړه ډاډه شو، کفار خدای ړانده کړل، د غار له خولې نه پستنه لاړل، اقبال صاحب دې قيصې ته اشاره کړې ده.

* لاخوف عليهم ولا هم يحزنون، ژباړه: اوس د هغو دپاره نه څه قسم وېره شته او نه به غم خوري.

چي امصا يې كړه اوچته، په فرعون پسې ورسم شو
بس يو داړ د لا تخف☒ ؤ، د كليمυ زړه پرې محكم شو
بې له خدايهΨ بل څه خوف، پوخ دښمن ستا د عمل دى
قافلې د ژوندانه ته، لكه لار و هونكى غل دى
نيت همت ته زړه كښې كښېني، په خوله يې داسي وينا وشي
هسي نه چي داسي وشي، كه دا وشي بيا به څه شي
كه ستا خاوره كښې شي تخم، داني لرې وي كه زياتې
دى پر لار د ترقې كښې، ژوندانه ته پښې كړي ماتې
ويره ده پيدا كمزورې، د كمزورې مينې يووړه
رپېدلي د ګېدلي، زړه او لاسو سره يې جوړه
زموږ لار په سر پرته ده، دا د پښو طاقت په غلا وړي
لوږ فكرونه له دماغه، له هر چا ځنې هم دا وړي
يو دښمن كه په تا پوه شو، چي لږ هم يې وېرېدونكى
تا به وشو كوي ګله، له چمنه شو كوونكى
وي تېره به يې نظر توره، د فولادو له خنجره
هم بې توره د فولادو، ووځي ستا له تن او سره
را پراته زموږه پښو ته، دي د ويري ځنځيرونه

---

☒ قلنا لا تخف انك انت الاعلٰى، موږ ورته اووې اې موسٰى مه وېرېږه بېشك هم ته غالب يې.

ګني سيند زموږ ختلی، چلې۔ چلې سيلابونه
که ستا بږغ نه خيزي ګله، يوه وجه ده نه بله
په رباب د دې تارونه، سست د ويرې له کبله
غوږ يې راکاږه چې ترنګ يې، په جهان کښې قيامت جوړکړي
چې د زېر او بم له تاوه، په آسمان کښې قيامت جوړکړي
ويره ده د مرګ جاسوسه، ده راغلې له هيواده*
لکه ميم د مرګ چې تور دی، په زړه توره هسې دا ده
دي ورانکاري د دې سترګې، ورانوي د ژوندون چارې
هم دي غله د دې غوږونه، تل وهي د ژوندون لارې
ستا په زړه کښې چې هر شر دی، يا شر چرې پيدا کيږي
که رښتيا راباندې واېې، دا له ويرې پيدا کيږي
کينه مکر خوشامنده، که دروغ له پاک زبان دي
د دې ټولو يوه مور ده، دا د ويرې ماشومان دي
تېر، ټګې، منافقتوب دی، رخت د دې قميص ترې کيږي
د لمن لاندې يې په غېږ کښې، سل فتنې دي چې لوييږي
له همته نه کلکيږي، ويره ځکه ټوله ربړدي
په خندا يې تېروي دا، که بد حال وي غاړه کښېږدي
هغه څوك چې په رمزونو، د نبي دی پوهېدلی

---

* وطن.

نو هغه د زړه په سترګو، پټ په خوف کښې شرك ليدلی

%%%

# د غشي او توري خبرې

د تود جن-ګ په يو ميدان کښې، غشي توري ته بيان کړو
توري اېښی ورته غوږ ؤ، د حق راز هغه عيان کړو
وې اې توروې دی جوهر ستا، ښاپېرۍ د غرونو ګرانو
ذوالفقار د عليτ هم دی، ستا له لوړو مشرانو
د خالدτ غوندي مېړونو، قوتونه تا ليدلي
ماښامونو ته پر سر تا، شفقونه دي شيندلي
د خدای قهر سره اورونه، ستا په خونه کښې دولت دی
اې* چي ستا د سيوري لاندي، د فردوس غوندي جنت دی
زه که يم په غشي ور کښې، که پر اس د هوا سپور يم
چي يم چرته توري تروري، نه سرپړمه سور اور يم
د سينې په لوري زغلم، د ليندۍ نه چي خطا شم
په کښې ننه ښه وګورم، په سينه کښې چي رسا شم
که محکم زړه پکښې نه وي، له غمونو ويرو پاك
داسي زړه وي چي پکښې کا، انديښنې فکرونه ژواك

* ان ابواب الجنة تحت ظلال السيوف، ژباړه: جنت د تورو تر سايو لاندي دی.

نو په خپله تېره څوکه، يې څيري يو سم غوبنې۔ غوبنې
ورته وکړم د سرو وينو، نيم تنې د خپلې غوبنې
او که نه خو نه رڼا کړي، پکښې ننه زړه مومن وي
هم ظاهر يې ځلېدلې، له رڼا نه د باطن وي
نو د دغه زړه په مخکښې، توري ترور اوبه۔ اوبه شم
دا د اوسپنې توبرې مي، پرخه وه څاڅي و نه شم

%%%

# حکايت د عالمګيرؒ او د زمري

يو باچا د باچهانو، عالمګير ؤ مشهور
لکه پوزه په مخ دی و، قبلې ته د تيمور
که لوړتيا د مسلمان شته، په آسمان دی هغه وړی
د نبيρ د غوري شرعي، احترام دی هغه کړی
دا تر منځ د دين او کفر، جن-ګ تود شوی نرغونی ؤ
خو زموږ په غشي ور* کښې، دا يو غشي وروستنی ؤ
هغه تخم د الحاد چي، د اکبر کوم و کرلو
بيا په خاوره د دارا کښې، شو بنکاره و ټوکېدلو
د سينو په کوټکو کښې، نه وو زړونه ډيوې بلې

* ترکش.

ۀ زموږ په دې ملت کښې، فسادونه شور او هلې
خدای په هند کښې کړلو غوره، و دې کار ته عالمګیر ځوان
په شاهۍ کښې د فقیر شان، ښه مېړه ۀ د شمشیر ځوان
په دې کار کړو خدای مامور دی، چې ژوندی رښتونی دین کړي
چې کاروان پرسمه لار کړي، بیا یې له سره پوخ یقین کړي
برېښ د تور یې لکه تندر، رشه وسوه د الحاد
ډیوه یې کړه د دین روښانه، دا محفل یې بیا کړو ښاد
ناپوهانو پوري جوړ کړل، د ناحقو داستانونه
په اوچته مرتبه یې، پوهه نه کړل چا ځانونه
د توحید د بلې شمعې، په رڼا مین پتنګ ۀ
په دې توره بتخانه کښې، د باطل سره په جنګ ۀ
په شاهانو کښې نومورې، بې مثال هغه ښاغلی
تر شعلې د فقر خیزي، که چا ولید د ده ځلی
د لوی شان او د لښکر، و شهنشاه فقیر مزاج
تخت یې کړه په پښو ویاړنه، کړه په سر یې لوېې تاج
یوه ورځ روان شو سیل ته، د ځنګل په شاړو پاړو
یو مری چې وفادار ، هغه هم ورسره لاړو
پکښې ډوب او مست روان ۀ، داسي خوږ د سحر باد ۀ
ونه۔ ونه کښې چغار ۀ، هر مرغی په ثنا ښاد ۀ

په لمانځه و درېدلو، لکه ورك شو شاه په پټ[✉] کښې
د مجاز له پولي واوښت، شو ورګډ په حقیقت کښې
چرته وړی زمری راغلو، په ځنګل کښې غرمبېدلی
غرمب یې ملك پر سر اخستی، له آسمان راتمبېدلی
د بنده په بوی پسې وه، راغلو خوا ته شهنشاه ته
ور خطا یې کړله پنجه، شرپ یې ورکړو د ده شا ته
نالیدلې یې توره راکښه، د مومن ګوزار یې وکړو
کړو زمري، زمری دوه ځایه، مېړنۍ ؤ کار یې وکړو
لږ هم نه شو کوزه بره، نه یې په زړه کښې څه خوف تېر شو
څه خبر ؤ له زړوره، شېر ببر د قالین شېر شو
په بې صبره منډه راغلو، مین بیا د لمانځه ځای ته
له حضوره سره لمونځ یې، ؤ معراج و درېد خدای[Ψ] ته
داسي کلك او خود نما زړه، چي هم نرم خود شکن وي
د سیپۍ ګوهر ور ځار شه، د مومن سینه یې وطن وي
لکه نشت د خدای په ور شي، هر بنده د حق چي ورشي
د باطل په وړاندي ښخ وي، نه ستنیږي لکه غر شي
اې ناپوهه! څه به ښه وي، که پیدا د غسي زړه کړې
معشوقې لره باید چي، کجاوه تیاره ته کړې

---

[✉] وفا.

ځان ته ځان مه وايه ځار شه، بس په دې کښې ځان موندل دي
ورته خور کړه دام د نياز چې، دا مارغه د ناز نيول دي
انديښنه فکر پر سوزه، د عشق سره کړه انګارونه
د خدای مخکښې لومبړ اوسه، د زمرو کوه کارونه
خوف د خدای چې وي په زړه کښې، د ايمان دغه عنوان دی
د بل چا نه ويره شرک دی، خو ښکاره نه دی پنهان دی

%%%

# دويمه ستن

# ((رسالت))

د "اُفلو[☒] برېښېدونكى، ابراهيمυ[✎] د خداى خليل دى
چې پر سمه لاره پلونه، و نبيانو ته دليل دى
خداىΨ به تل وي دا خليل يې، يوه نخښه د قدرت ؤ
او ارمان د ده په زړه كښې، د يو ښه پتمن ملت ؤ
دواړه ستركې يې تل رواني، نه يې خوف نه يې آرام ؤ
چې "طهر بيتي[*]"، راغلو د الله ځنې پيغام ؤ
ده زموږ د خير دپاره، ورانه شاړه كړه آباده
ده طواف[(4)] ته د قامونو، د خداى خونه كړه بنياده
چې آخر د "تب علينا[*]"، بوټى شولو ستركې- ستركې

---

☒ **افل: هغه ځيز ته وايي، چې كوم شي وركېدونكى او ډوبېدونكى وي، لكه لمر، ستوري، دا اشاره د قرآن ده، آيت له ده "لا احب الأفلين. ژباړه: زه له ډوبېدونكي ځيز سره مينه نه لرم.**

✎ **ابراهيمυ دا دعا كړې وه: ربنا واجعلنا مسلمين لك و من ذريتنا امة مسلمة لك،**
ژباړه: اې زموږ خدايه! او موږ دواړه فرمانبردار كړۀ، او زموږ له اولاد ځنې يو امت پيدا كړه، چې ستا فرمانبردار وي.

* **وعهدنا الٰى ابراهيم و اسمٰعيل ان طهرا بيتي للطائفين والعٰكفين واركع السجود.**
ژباړه: او موږ د ابراهيم او اسمٰعيل ځنې لوظ واخستو، چې تاسو زما كور د طواف كونكو، اعتكاف كونكو او ركوع، سجده كونكو دپاره پاك صاف ساتئ.

(4) **ربنا اني اسكنت من ذريتي بواد غير ذي زرع عند بيك المحرم.**
**ژباړه: اې زموږ ربه! ما ډيره كړل بعض اولاد خپل په هغه دره كښې چې څه پكښې نه زرغونيږي، په څنګ ستا د كور كښې دا معزز دى.**

* **ابراهيمυ پخپله دعا كښې دا هم ويلي ؤ چې:**
وارنا مناسكنا و تب علينا انك انت التواب الرحيم

بیا زموږ د سپرلي باد کړو، باغ د ګلو سترګې- سترګې

پاك الله ته وه منظوره، جوړه يې غونډه ستا زما کړه

چي يې جوړ د ملت تن کړو، رسالت يې ورته ساه کړه

ۀ دنيا کښې خواره توري، نه مطلب نه آوازونه

رسالت داسي يو ځای کړو، لکه وي مصرع موزونه

يو وجود شو په جهان کښې، دا تکوين له رسالته

زموږ دين له رسالته، هم آئين له رسالته

رسالت کړو لکه موتې، صد هزار ۀ که بې شمار ۀ

کړو يې موږه پرله پوري، که بيل- بيل وو که تار- تار ۀ

هغه ذات چي مهربان دی "يهدي من يريد✉" يې شان دی

کړه ويره✎ د رسالت يې، له موږ تاؤ چي نګهبان دی

دغه غونډه د ملت تل، غزوي دا ګېڼه خپله

دی مرکز يې په مکه کښې، نه بيليږي له بورجله

رسالت پوري تړلي، نو ياديږو په ملت موږ

نورو خلګو د دنيا ته، لکه زېری د رحمت موږ

عظيم بحر رسالت دی، لکه موج له بحره خيږو

---

ژباړه: او موږ له د عبادت طريقې وښيه، او زموږ توبه قبوله کړه، بېشکه ته توبهٔ قبلونکی او رحم کونکی يې.

✉ **معنه:- چا ته چي وغواړي نو هدايت ورته وکړي.**

✎ **شپول.**

هرې خوا ته ځو غزېږو، نه خورېږو نه بېلېږو
د رسولρ امت د ننه، پنا ځای د حرم تل* کښې
د تکبیر کوي بړغونه، لکه وي زمری ځنګل کښې
که لوستو ته مي د تورو✉، د صدیقτ نظر پیدا کړې
په معنا پسې کې یې خانه، د تحقیق وزر پیدا کړې✎
نو نبيρ به هله تاته، لوی قوت د زړه ځیګر شي
درته خوږ به شي له خدایه، نبيρ داسي د زړه سر شي
د مومن د زړه دپاره، د نبيρ کتاب قوت دی
او حکمت یې دی شهرګ ، چي ژوندی ځنې ملت دی
که لمن یې موږه پرېږدو، بس نو مرګ به زموږ دا وي
لکه باد چي د خزان کا، د چمن ګلونه مړاوي
قام موندلی که ژوندون دی، دا راوړي پیغمبر دي
که څه تود زموږ سحر دی، نو دا تاؤ د دغه لمر دی
پلوشو د دغه لمر ته، موږه برېښو ځلندي یو
پیداوښت د یو الله ؤ، دا راغونډ کړو نو ژوندي یو
یوه خوله شو په یو زړه شو، چا اوچت کړو؟ رسالت کړو

---

* غولی.

✉ حرفونه.

✎ زما کار خو دغومره ؤ، چي ترجمه مي د شعر وکړه، د دې شعر مفهوم څه ډوب ښکاري، ځکه چي اقبال صاحب ډېر لوی عالم او غټ فلسفي او هم صوفي ؤ، په دې شعر کښې هم د تصوف رنـګ معلومېږي. خدای ښه پوهېږي. ((سمـنـد ر))

بس یوه مي مدعا شوه، چا د پت کړو؟ رسالت کړو
د یوې مدعا ګنه، په یوه لاره وحدت شو
دا یو والی لکه غر شو، غر ولاړ نوم یې ملت شو
د یووالي نه موندلی، هرې ګڼې و ژوندون دی
د فطرت له دین اسلامه، د مسلم۔ مسلم ترون دی
دغه دین چې د فطرت دی، له نبيρ دی موږ موندلی
هر یو تن د حق پر لاره، یو مشعل دی بلېدلی
دا ګوهر چې راسره دی، دا ي-ې له بحره بې پایان دی
موږه ټول یو پرله پوري، د هغه په موږ احسان دی
که یو دغسي یو موټی، ورځ په ورځ به کوو وده
دومره اوږد به مي ژوندون شي، یو ژوندي به تر آبده
زموږ غونډه* خدایΨ کړه خوښه، نبوت یې پرې تمام کړو
هر چه دی زموږ رسولρ نو، رسالت یې پرې تمام کړو
خوندور د وخت محفل دی، دا زموږه له جامونو
هغه ختم د نبیانو، موږه ختم د قامونو
دا خدمت د ساقیتوب یې، موږ ته وسپاره پر مځکه
بس وروستی دغه کاسه وه، چي یې موږ ته کړه را ډکه

* امت.

کله! "لا نبي بعدي⌧"، دا د پاك الله احسان دی
د نبي د دين ناموس ته، ده پړده عزت او شان دی
بس چي ختم نبوت دی، دا دولت د قام قوت دی
د ملت يووالي راز دی، د راز دغه حفاظت دی
دا هغه ته ده منظوره، خدای کړه هره دعوه رده
د اسلام رده يې پخه کړه، چي پرته وي تر آبده
مسلمان د يو الله دی، نه ترې زره په بل پوري
کړي "لا قوم بعدي*" چيغه، نعرې نه کړي نوري توري

⌧ زما نه پس نبي نشته.
* له موږ نه پس بل قام يعني امت نشته.

# د رسالتρ د محمد

## ځنې مقصود دا دېچي دآدم د نوغي د حریت، اخوت او مساوات تاندي مضبوطي شي

بنیادمو په دنیا کښې ،د بندیانو بنده توب کړو
واک پر دې نابوده غړي، نور يې ډېر بې خونده توب کړو
د قیصر کسرٰی زورونه، غله وو خلق يې لوټلي
د هر چا مرئ کښې پرې، هم يې لاس او پښې ترلي
کاهنان* او پاپاکان% او، سلطانان✍ ډېر ازاریان وو
د یوې مرغۍ دپاره، په هر لوري ډېر ښکاریان وو
د غازي توره بمبل وه، کړه يې تیکي ته دننه
وې چې بس په ما حرام شه، ستا د وینې تویونه
شوه جنډه د ایران کوزه، آخر فتح دا میدان شو
د ساسان د اولاد اور ؤ، د سرو ایرو ډېران شو
پس له هغه شوه څرګنده، چې قیدي خو سر لښکر ؤ
او جابان د ده نامه ده، په زړورو کښې زړور ؤ

* کاهنان:- د یهودو مذهبي مشران وو، هغه ته به يې کاهن وې، یعني جادوګر
% پاپا:- پاپا به يې د عیسایانو مذهبي مشر ته وې.
✍ سلطان:- شخصي حکومتونه هم ډېر وو، اکثر به يې په سلطان بللی شو.

سر لښکر بو عبیده ؤ، ننګیالو کښې د حجاز
په تود جن-ګ کښې به یوازې، په مرغو و راغلو باز
ده وې اې مسلمانانو، که زما په بړغ مو غوږ دی
موږ د یو رباب تارونه، پکې یو زموږه بړغ دی
لکه چیغه د بوذرτ ده، لکه چیغه د حیدرτ ده
که له کومې راختلې، د بلالτ او د قنبرτ ده
د ملت همه سرونه، ساتندوی د امانت دي
د هر یو کینه او روغه، کینه روغه د ملت دي
که د فرد د روح دپاره، وې ملت رده ژوره
نو بیا لوظ د ملت دی، د یو آن د خولې خبره
دا منم چې دا جابان دی، یو دښمن په لاس راغلی
خو زموږ یو مسلمان ورور، دی یو ځلې دی بخښلی
د خیرالانام امته! اوس ورکړی موږ امان دی
نه د ده قتل روا دی، نه دا شان د مسلمان دی

%%%

# حکایت دابو عبیدهτ او جابان

## د اسلامي ورورولۍ په حقله

جن-ګ د حق او د باطل ؤ، د يخوا نور احوا انکار ؤ
يو غازي زمری راګير کړو، د ايران سپاه سالار ؤ
جنګيالی ؤ توریالئ، ازميلی ؤ هوشيار ؤ
تېرېستونکی ؤ چلګر ؤ، ډېر خوله ور ؤ بد مکار ؤ
کړه يې خپله عهده پټه، هيڅ يې و نه وې چي څوک يم
څه مي نوغی، څه مي نوم دی، څه مقام او د څه څوک يم
خوله يې خواره کړه غازي ته، وې چي امن د سر غوارم
تل بخښل مسلمانان کړي، زه هم ستا په مخکښې ژارم
اورخانو کښې اورپرست ؤ، که څښتن ؤ د اورنګ*
د اولس په پنجرونو، د چا برخه چا قلنګ
جنتونه خرڅوونکي، اسقفان✡ ورډي د مال ؤ
په دې خوار مارغه پسې به، ګرځېدل په مټه جال ؤ
چرته دوی ته رشې وسوې، اور پرستو په اورونو
چرته يې لوټ برهمن وکړو، په باغونو په کورونو
مرئيتوب اولس بې سې کړو، هم بدل يې کړه او وړه✉ شول
د شپېلی سوي بړغونه، په شپېلی کښې ننه مره شول

* تخت.
✡ د عيسايانو لوی پادري، دې پادري به د خلګو دولت اخستو او د جنت چهټی به يې ورکوله
✉ کړه وړه: خت و خال ته وايي، دلته د اقبال د فطرت په معنا استعمال شو.

را پيدا امانتګر[1] شو، حق يې وسپاره حقدار ته
د خاقان ګدئ يې ورکړه، يو بې نومه مريي خوار ته
ده له مړو يخو ايرو نه، سرې لمبې په غرهر کړې
ده کوهکن کړلو راپورته، د پروېز رتبې يې ورکړې
د مريي د کار قيمت يې، کړو اوچت له يوه واره
بادارتوب يې واخستلو، په يو ځلي له باداره
دا د خدای قوت چې راغلو، هريو زور صورت يې مات کړو
جوړ يې نوعي د انسان ته، نوی کوټ نوی حيات کړو
نوې ساه يې پکښې پو کړه، آدم و ميند نوی ځان بيا
د خدايانو نه يې واخست، د خدايانو بنديوان بيا
دا د ده ژوندي کول شول، لکه مرګ زړې دنيا ته
مرګ شو اور ته اور پرست ته، بت خانې ته هم ترسا ته
د هغه له پاك ضميره، شوه پيدا آزادي غوره
دا خواږه شراب څخن شول، د هغه د کور له کوره%
نوي دور که راورې، سل ډيوې دي بليدلې
په ځولۍ کښې د هغه دي، د دوی سترګې غړېدلې
داسي نوې نخښې را کښې، يو قوت يې را پيدا کړو
د دنيا سنبالوونکې، يو امت يې را پيدا کړو

(1) نبيρ % انګور.

بې له خدایه نور له هرڅه، بس په څنګ دغه ملت شو
او ډیوې د مصطفٰیρ ته، بس پتنګ دغه ملت شو
تاؤ د حق کړو سینه زورر، دا یې شوه داسي امت دی
چي ذرې د لمر په کور کښې، ده ډیوه داسي امت دی
داسي مسته نشه یې راوړه، چي دنیا یې کړه رنګینه
بت خانې همه کعبې شوې، افریقې فارس تر چینه
غور نیکونه یې نوموړي، انبیاء او مرسلان دي
په اکرم* یې خدای بللی، پرهېزګاره متقیان دي
کل مومن اخوة یې، په غمي د زړه لیکلی
بې له خدایه بل د هر یو، قید او بند ځنې وتلي
نه اوبه په ډانګ بیلیږي، نه دوی بیل کړل رن-ګ ؤ ذات
دوی په وینه کښې راوړلي، وروروِلي او مساوات
د دې پاک امت اولاد تل، لکه سرو وي آزاد تل
د ازل د ورځې لوظ، د قالوا بلٰی✉ یې یاد تل
په هر وچولي یې کل جوړ دی، کړي سجدې د خدای په لوري
له ادبه یې په پښو پرېوت، د آسمان سپوږمۍ او ستوري

%%%

* ان اکرمکم عندالله اتقٰکم. ژباړه: بېشکه په نزد د الله تعالٰی عزتمن په تاسو کښې هغه څوك دی، چي کوم ډېر پرهېزګار وي.
✉ الست بربکم قالوا بلٰی. ژباړه: زه نه یم ستاسو رب؟ (ټولو خلګو) ووې چي هم ته یې.

# حکايت د سلطان مراد او يو ترکاڼ

## د اسلامي مساوات په حقله

يو تر کاڼ ؤ ډېر نوموړی، شهريه کښې د خجند
وه په کار د آبادۍ کښې، د دنيا په مخ څرګند
د فرهاد نوغي اخته شو، کړو ښکاره يې خپل صنعت
د سلطان مراد په حکم، ده کړو جوړ يو جماعت
د شاه خوښ نه شو تعمير، سور له قهره شو غوغا شوه
د معمار* دغه تقصير، خپل هنر ورته بلا شوه
د سرو ستر ګو نه يې تاوونه، څڅېدل د اور بڅري
لاس يې غوڅ کړو ترې په توره، شو په شان د يو وزري
د ترکاڼ د وينو سيند ؤ، مځکې سره کړه په خرړا لاړ
بې ګناه غريب ناچاره، لوی قاضي ته په ژړا لاړ
هنرمند ؤ په دې لاسو، سوري کړي وو کاڼي ډېر ده
د باچا ظلم له سره، لوی قاضي ته کړلو تېر ده
وې چي اې هره خبره، ته د خدای په شريعت کړې
د قانون د محمدρ هم، ته بېشکه حفاظت کړې
مريې نه يم د شاهانو، دلته غور د ځان غوارم

---

* ترکاڼ.

په باچا زما دعوه وه، فيصله د قرآن غواړم
قاضي و چيچله شونډه، وو عادل نه ډوډي غړب وه
په باچا پسې کاغذ لاړ، عدالت ته يې طلب وه
د قاضي په وړاندي راغلو، رنګ يې زېړ و تښتېدلی
د قرآن له ډېري ويرې، رپېدلی، دګېدلی
کوزي سترګې له ډېر شرمه، ناقراره پر زلزل وه
اوس که زېړ ؤ نو اوس سور شو، مخ يې بس د رېدي ټل وه
په يو لوري دعوه ګر وه، يو ترکانړ نيمګړی بخت
په بل لوري ګناهګار ؤ، يو څښتن د تاج و تخت
باچا اووې شرمنده يم، زما غاړه شرعه پړی
زه په خپل جرم ډاډه يم، اعتراف مي دی راوړی
قاضي اووې چي سلطانه، حکم "فی القصاص حيوٰة*" دی
چي په دې قانون چليږي، هغه ژوند لره ثبات دی
مسلمان که مريي هم وي، هيڅ کم نه دی له احراره
که ستا وينه تکه سره وي، غوره نه ده له معماره
چي قاضي د دې آيت نه، ؤ سلطان مراد خبر کړو
لاس يې واچولو لاس ته، تر لستوڼي يې بهر کړو
مدعي ورته بړغ وکړو، ټينګ يې نور نه کړلو ځان

* ولکم فی القصاص حيوٰة: ژباړه: او تاسو ته په قصاص کښې ژوند دی.

د قرآن آيات يې اووې، چي باالعدل والاحسان⊠
وې چي بس دی ما بخښلې، ستا ګناه د خدای دپاره
بيا به مخ د مصطفٰیρ مي، وه بخښلې شهرياره
که اخواته سلمان وه، خو مېړی ورباندي بر دی
اوس د زړه په سترګو ګوره، دا قانون د پيغمبرρ دی
که مريې وي که باچا وي، د قرآن په مخکښې يو دي
که وي کند او که قبا وي، د قرآن په مخکښې يو دي

%%%

# اسلامي آزادتيا او د کربلا د حادثې راز

چا چي سر په رښتيا کښېښو، پر درشله د پاك ربΨ
د هغه له غاړې ووت، د بل هر يو رب جلب
مومن تن او عشق ي-ې سا ده، که يو نه وي بل به نه وي
هغه وړه عشق دی کړی، چي ناشوني موږ ته څه دي
عقل هم دی ډېر بې رحمه، ډېر ناترسه دی سفاك دی
عقل لا څو چونګه دپاسه، ډېر چالاك بېباك او پاك دی
عقل نښتی د اسبابو، علتونو په ول۔ ول دی

⊠ ان الله يامرکم بالعدل والاحسان. ژباړه: الله امر کوي د عدل او احسان.

عشق کوي تل اسپنډوسه*، میدان ورې د عمل دی
عقل اچوي دامونه، ښکار په مکر کوي مکار دی
عشق د متو په زور خانه، رانیولی هر یو ښکار دی
عقل شك او ویره پنګه، په صندوق زړه منډلی
عشق یقین او عزم دواړه، په لمن پوري ګنډلی
عقل داسي آبادي کړي، چي آباد کاندي برباد
عشق هم داسي بربادي کړي، چي برباد کاندي آباد
عقل بس د باد مثال دی، په دنیا کښې دی ارزان تل
عشق کیمیا کمه مونداې شي، دې قیمت یې ځکه ګران تل
عقل ځان ښه مضبوط کړی، په آرود* څنګه څو✍ دی
عشق لغړ نوکو تر سره، له لمرو% د څنګه څو دی
عقل وایي مخکښې تېر شه، وکړه بحر او په بر لوبې
عشق خو وایي امتحان دی، اول وکړه په سر لوبې
عقل دی پیدا له کسبه، آشنایي د غیر کړي ګله!
عشق خو فضل دی چي وشي، کړي کرل رېبل پخپله
عقل وایي خوشحالي کړه، په دنیا کښې ښاد آبادد شه
عشق اول وایي بنده شه، پس له هغه بیا آزاد شه

---

*چوګاز بازي.

* **آرود، رود. ✍څنګه څو، چون و چند. % لمرو، لباس.**

د عشق روح ته لکه پاهه، قرار دغه آزادي ده
د ده اوښې ته ساروانه، په لار دغه آزادي ده
تا به دا وي اورېدلي، د ميدان د جن‌ګ او تندي
چي په عقل خوار اوږد سترګې، عشق وکړلې څه ـ څه شيندي
هغه سر د عاشقانو، د زهرا د زړګي سر وه
آزاد سرو يې په چمن کښې، د نبي نورالبصرρ وه
د پلار شان ته خو يې وګوره، لکه "ب" د بسم الله وه
د ځوی شان يې څومره لوی دی، د "ذبح"* عظيم معنا وه
چي دی خير د امتونو، د هغه د سترګو تور دی
چي خاتم دی د نبيانو، د هغه د اوږو سپور دی
دا چي عشق دی پر غاوره، د هغه د وينو رن‌ګ دی
دا مصرعې ځکه خوږې دي، پکښې ياد د هغه ننګ دی
دومره پورته په امت کښې، و د دغه صاحب ځای شته
لکه توري✉ قل هو الله، په کتاب کښې چي د خدایΨ شته
د موسٰیυ او حسينτ يو خوا، د فرعون او يزيد بل خوا
دي هم دا دوه قوتون،ه که ژوندون شي زر او سل خوا
د حسينτ قوت اونن‌ګ دی، چي سمسورتړې د حق باغ دی

---

* وفديناه بذبح عظيم، ژباړه: او موږ ډېره لويه ذبيحه د هغه په بدل کښې ورکړه.

✉ حرفونه.% آزادي. ✍ ظلم.

او باطل د امیرتوب یو، د ارمان وروستنی داغ دی
خلافت چي قرآنه، رشته پرېِ او بیله لار کړه
حریت% ته يې په خوله کښېِ، و د زهرو ګپه ور کړه
د خیر الامم جلوه وه، شوله هسکه چي ربا شي
لکه ښه ډکه وریځ وي، د قبلې له مخي راشي
په بنجر د کربلا کښېِ، وریز و ورېده لاړه
د رېدي ګلو په کر يې، کړه آبادده دا ویجاړه
نغرېِ د استبداد✍ يې، تر قیامته پوري سوړ کړو
خپل وینې يې لښتي کړې، ګلستان يې جوړ او موړ کړو
په سرو وینو تورو خاورو، و رغښتو د دین دپاره
دی بنا* د لاله شو، پاکه يې کرله د دین لاره
که مقصد يې په دنیا کښېِ، باچهي وای د زړه سره
بیا بېِ داسي سفر نه وه، بېِ سامانه بېِ لښکره
لس او شل او زر څه وايې، لکه شګې مي دښمنان وو
د ده ملونه څو زاړه وو، یا نو ښځې ماشومان وو✉

---

* سردار و نه داد دست در دست سیزیل
حقا که بنائی لاالٰله است حسینτ

(خواجه معین الدین چشتيرح)

✉ د دې شعر لفظي معنٰی به داسي وي:

دښمنان يې لکه شګې وو بې شمار قطار وو
او دوستان د ده که وای د یوه الله په شمار وو

هغه راز چي ؤ تر منځه، د پلار ځوی په منا کښې
د منا هغه مجمله، شوه تفصيل په کربلا کښې
کي يې خبر په اراده شې، لکه غر غوندي ولاړ وه
کلك او دروند او توند او تېز، کامیاب چي څه ته لاړ وه
توره ده د دې دپاره، چي محفوظ د دين عزت وي
چي قانون په حفاظت وي، چي ملاتړ د شريعت وي
چي مومن وي بې له خدايهΨ، په بل ورنه کښته کيږي
که فرعون ته مخکښې ورشي، د ده سپړ نه کښته کيږي
د امام د وينو څاڅکو، دغه راز لکه په جار کړو
که ملت په خوب ويده ؤ، په دې ډغ يې را بيدار کړو
چي د "لا" توره يې بمبل کړه، توري شپې شوې ورځې سپينې
د دروغو د خدايانو، شوې روانې د رګ وينې
لکه وي په کاني کرښه، الا الله يې وه ليکلو
د نجات دغه سر خط مي، په صحرا يې وه ليکلو
د قرآن د رمز خبري، حسين موږ ته کړې بربندې
د هغه د عشق له اوره، شعلې کړلې موږه غوندې
شان د شام او د بغداد ؤ، خو نن دی تېرې خبرې
د بد به د غرناطې ؤ، خو نن دي هېرې خبرې
خو په هغه زوړ شاباز مو، تار لړ ځان دی لا تراوسه

پروت په غوږ کښې د ایمان مو، زوږ اذان دی لا تراوسه
راشه اې د صبا باده! ، اې ریبار د هغه تللیو
دا د اوښکو ځولۍ یوسه، د هغو تر پاکو ځلیو

%%%

# د محمدρ ملت د توحید او رسالت په رده پروت دی،

## ځکه د ده ځای مکان انتها نه لري

چي له ځانه خبر نه وي، سرې څه وي بند په دام کښې
موږ نه قید یو په مقام کښې، نه شراب غوندي په جام کښې
څوك د هند دي که د چین دي، دا تیکری زموږ د جام دی
که د روم دي که د شام دي، زموږ خاورې د اندام دي
ولې ملك زموږ د زړونو، هند او شام او نه ختن دی
زړه وطن دی د اسلام او، بس اسلام د زړه وطن دی
کعبτ✉ راغلو پیغمبرρ ته، چي یې پرېښولو عناد%
ده لیکلې قصیده وه، نوم یې وه بانت سعاد
نور ستایلو د ده توري*، مرغلرې کړې له نوره
پیغمبر یې و ستایلی، ښه "د هند له تورو توره"

---

✉ حضرت کعب چي اسلام را وړی نه ؤ، نو رسول اللهρ ته به یې ډېر تکلیف رسولو چي مکه مسلمانانو فتح کړه، نو دی طایف ته وتښتېدو، هلته یې زړه واوړېدو، د نبي ρ قصیده یې ولیکله، نامه یې ورته "بانت سعادة" کښېښوه" او د پیغمبرρ خوا ته راغلو، توبهٔ یې وکړه، د تیرو ګناهونو یې بخښنه وغوښته، نبي کریم ρ خو د عالمینو رحمت ؤ، معاف یې کړو، او د قصیدې په انعام کښې یې خپل څادر مبارك ورکړو، په دې قصیده کښې حضرت کعب د حضور نبي کریمρ په حقله "سیف من سیوف الهند" تکی استعمال کړی ؤ، یعني د هندوستان له تورو یوه توره، ګني په هغه زمانه بهٔ د هندوستان توري مشهورې وې، حضورρ د کعب په دې شعر کښې اصلاح وکړه، وې چي داسي وایه چي: "سیف من سیوف الله" یعني د خدای له تورو یوه توره، مقصد دا چي پیغمبر د یو ملك سره خپل نسبت خوښ نه کړو. % دښمني.

* حروف.

عالمونو ته رحمت وه، له آسمانه ډېر اوچت وه
خوښ یې نه کړل دغه توري، د یو ملك سره نسبت وه
وې چي راته وایې، نو له تورو د خدای وایه
حق پرست یې نو کوږ مه څه، چي وینا کړې د ځای وایه
چي رازدان د جز او کل دی، او چي خاص دی د خاصانو
چي رانجه یې د پښو خاورې، دي د سترګو د نبیانو
دې ملت ته یې هم وېلې، چي "و ستا د دنیا زه
خوښومه خوشبویي او، هم طاقت او هم نسا زه"
اوس که شوق د د معنو وي، لاره ښیونکی مل د لاري
نو په تورو کښې د "ستاسو"، نکته شته دی که هوشیارې
یعني دا چي په دې سرای کښې، هغه شمع وه روښانه
بلېده په دې دنیا کښې، ولي نه وه له دنیا نه
لا✉ په خاورو په اوبو کښې، آدم پروت ؤ چرته لرې
چي لېوالو فرښتو کړې، د هغه د نور خبرې
نور خبر له دې زه نه یم، چي هغه له کوم وطن دی
دومره یمه پوهېدلی، چي په موږه ډېر مین دی
دا جهان یې زموږ شمار کړو، که موجود ؤ هم په دا کښې

---

✉ کنت نبیاً وآدم بین الماء والطین. (حدیث)
ژباړه: زه پیغمبر وم چي آدمυ لا پیدا نه ؤ.

ځان يې داسي و شمارلو، لکه وي په مېلميستيا کښې
يعني دا چي موږ روحونه، تابا* نونه دي ورك کړي
موږ د خاورو په کندو کښې، خپل ځانونه دي ورك کړي
زړه تړل په وطن پوري، دا ده کوزه ستا له شانه
د دنيا په څنګه څو کښې، چي ورك نه شې مسلمانه!
مسلمان کله ځايېږي، په لمن د يو هيواد⊠ کښې
شام او روم خوشي خبرې، د هغه په زړه آباد کښې
که يو زړه دي کړو په لاس کښې، نو دا دومره لوی جهان دی
پکښې ورك شي جهانونه، چي دا زړه د مسلمان دی%
دا خبره خوښوه پاکه، د مسلم د قوميت بس
چي وطن شو پر ځای پاتې، پاك نبيρ وکړو هجرت بس
په دنيا کښې خوربدونکی، يو ملت يې کړلو جوړ
کلمه يې ورته رده کړه، په حکمت يې کړلو جوړ
بخښنانه د شاهنشاه وه، په دنيا شو خواره ځکه
جماعت مو شوه تندو ته، يو تر بله سره مځکه
هغه ذات چي په قرآن کښې، خدای کوي د کوم صفت

---

* د ټوټکو يو قسم دی، لکه د مشعل بلېږي، ډېره خوږه رڼا کوي، تابان ورته وايي.

⊠ وطن. % لفظي ترجمه بهٔ داسي وي:

زړه قابو کړه چي لوی کار دی درته کړم د زړه خبره
دا دنيا د اوبو خاورو پکښې ورکه شي له سره

چې الله يې ژبه کړې، ده د سر د حفاظت
دښمنان يې له هيبته، غړي مړه او ساه نيولي
شان شوکت يې ډګولی، توره ډال يې غورزولي
هغه ولې وطن پرېښو، نغري وو د نيکانو؟
ګڼې و تښتېد له ويرې، چې وه زور د دښمنانو؟
ده ربښتيا خبره بله، نه ويونکو چې ويلي
د هجرت معنیٰ څه نوره، دوی پرې نه دي پوهېدلي
د هجرت خانه مسلمان ته، يو دستور د ښه کېدو دی
يو آئين د ژوندانه دی، يو سبب د شته کېدو دی
د هجرت معنا بس دا ده، لوښې لوی وه اوبه کمه
چې را و نغاړي سيندونه، ځکه لاړو له شبنمه
د ګلګې له خوا نه تېر شه، ستا مقصود خو ګلستان دی
ستا د ډېري لويې ګټې، سر له دغه پوټې زيان دی
لمر ته نه ګورې چې خور دی، آزاد ت-ګ که مخ په وړاندې
څه عزت لري اوچت دی، ده دنيا يې د پښو لاندې
د واله غوندي تل پنګه، له باران ځنې مه غواړه
داسې بحر بې پايان شه، چې نه تل وي نه دي غاړه
دا سپين مخې او تريخ بحر، چرې وه ببديا ويجاړه
شو اوبه۔ اوبه له شرمه، چې يې غوره کړله غاړه

اراده دي د تسخير وي، له دې مځکې تر آسمانه
تر هغې دي قرار نه وي، چي غېږ تاؤ کړې له جهانه
لکه بحر کښې کب اوسې، دلته هسې آباد اوسه
د مقام او ځای له قيده، په دنيا کښې آزاد اوسه
که هر چا ته همت اووې، چي ارخونه پرېږده خيږه
هغه تاؤ لکه آسمان کړه، له شپږ واړه لوريه غېږه
د ګل بوی د ګل نه ووځي، بې پرواه له دغه کور شي
څوك يې مخه نيوای نه شي، په تمام چمن کښې خور شي
اې بلبله! ګل ته ناسته، څۀ له ځانه هم خبر يې
ايله ځاله په چمن کښې، دی در کړې خدای وزرې
لکه باد د صبا سپك ځه، هيڅ يو پښې پر سر ماخله
دواړه لاسه ترې را تاؤ کړه، ګلستان په غېږ کښې واخله
ځان له نوي دوره ژغوره، کتوري نه لري زانې
لارويه! هوښيار اوسه، نوې مځکه ده شخوئدانې

%%%

# وطن د ملت رده نه ده

وروروڼي ده هسي پاتې، يو تر بله ځان ځانۍ دي
په وطن يې ردې ايښې، د ملت د ودانۍ دي
چې وطن يې کړله شمعه، دوی د شمعې پتنګان شول
د يو نوعي بنيادم وو، قبيلې او د ځان۔ ځان شول
هم يې قام دی ورګډ کړی، جهنم ته په سپور اور کښې
هم ارام د جنت ګوري، په درزخ غوندي بد کور کښې*
د وطن دې يوې وڼې، روغ جنت له خلګو وړی
دښمني يې مېوه وکړه، داسي تريخ ؤ د دې زړی
هغه تاؤ د مېړنتوب يې، شوی خبرې نشه سور دی
هر سړی پردی۔ پردی دی، هر سړی د بل نه موړ دی
روح له تنه دی وتلی، ده پنجره د اندامونو
ادمتوب شو ورك اوس ياد دی، په جدا۔ جدا قامونو
د مذهب پر ځای چې راغی، سياست په نوي شان کښې

---

* الم تر الی الذين بدلوا نعمة الله کفرا و احلوا قومهم دار البوار، جهنم يصلونها و بئس القرار،
ژباړه: اې پيغمبره! تا هغه کسان نه دي ليدلي چې د الله نعمت يې په کفر بدل کړی دی او خپل قام يې په جهنم کښې ور ګډ کړی دی، چې هغه ډېر ناکاره ځای دی.
د دې شعر لفظي ترجمه بۀ داسي وي:
لا جنت اوس لټول کا په بئس القرار کښې خوار دوی
او دا ځکه چې احلوا قومهم دار البوار دوی

نو دا ونه زرغونه شوه، د مغرب په ګلستان کښې
د عیسٰی د دین خبرې، شوې زړې خوشې جګړې
په ګرجو کښې شمعې مړی شوې، اسویلو غوندې لوخړې
د تېر وار غوندې ټول لاړل، د اسقف[*] نه قوتونه
مهري يې و وتې له لاسه، عبث لاړل محنتونه
د عیسٰی امت ګرجې نه، له یو واره ورکړه لته
د دین پنګه چلیپا هم، هر څه وه غورزول کښته
د هریت چي ؤ مذهب ته، جامه څیر کړه تاره۔ تاره
دا شیطان و خپل استازې، رالېږلی دې دپاره
د فلارنس[⌧] باطل پرست دا، د ناحق لومي اوږدې کړې
د چا سترګې چي وې روغې، نو د ده رنجو ړندې کړې
چي په نوم د باچهانو، یو کتاب ده و لیکلو
نو زموږه په پټۍ کښې يې، د جن-ګ تخم و شیندلو
خپل فطرت روان په لوري، د تیارو په تیاره لاره کړو
د قلم په تېره توره يې، حق ټوټې ټوټې او تار په تار کړو
د آذر غوندې په خټه، دی بت ګروه پيدا شوی
نو څښتن د خطا فکر، بل ي بت تیار کړو نوی

[*] لوی پادري.
[⌧] یعني د فلارنس اوسېدونکی میکیا ولي نومیده، ده یو کتاب لیکلی ؤ، نوم يې ؤ: (کتاب الملوك) په دې کتاب کښې يې اولس دهریت او کفر ته اړولی ؤ.

مملکت[*] د ده په دین کښې، د معبود لکه د خدای$\Psi$ کړو
زړه خوخونه دیو خدای$\Psi$ وه، څومره غټ بت يې ورځای کړو

د اخلاصه چې يې پېښو کښې، دې معبود ته و سر کښېښو
د دنیا سود يې کړو کانی، حق پرده لکه ذر کښېښو

د باطل تیغې يې لوی کړو، د تعلیم يې دا اثر دی
تګې، مکر، تېرېستنه، په دنیا کښې نن هنر دی

چې حاصل يې بد انجام وي، رده يې کښېښوه د غوچارو
مالکونډي يې وه نوستلې، د نن وخت په کوڅو لارو

ده په سترګو کښې د خلګو ،توره شپه غوره او ښه کړه
تېر او مکر او فرېب دي، مصلحت يې ده نامه کړه

%%%

# د محمد$\rho$ ملت د زمان انتها هم نه لري،

## ځکه چې د دې شریف ملت د تلوالي وعده شوې ده

* لفظي ترجمه يې داسي ده:
مملکت د ده په دین کښې د معبود په شاني ده کړو
خطائي د فکر ګوره چې ناکاره څیز يې ښه کړو

تا لیدلي په سپرلي کښې، ډېر جوشونه د بلبلو
ټوکېدنې د غوټېو، هم غوړېدني د ښو ګلو
دي په شنو جوړو کښې جوړي، غوټۍ دي لکه ناوياني
ما وې مځکه يې د خاورو، که له ستورو ډک آسماني
شنه رانه۔ رانه پراته دي، د سحر اوښکو وينځلي
دي سندرو د واله ته، خوبولي۔ خوبولي
په ښاخونو کښې د غوټو، په مسکا چمن آباد دی
غېږه يې ده ځنې تاؤ کړې، خوښ په دې د نسيم باد دی
په چمن کښې هغه غوټه، چې ماليار و شوکوله
لکه بوی له چمن ووځي، هسي دا هم و وتله
کوکوشتکو وکړې ځالې، جوړ يې وکړلو الوت لاړ
پرخې راغلې له آسمانه، بوی له ځايه شو اوچت لاړ
د ربدي غوندي ګلونه، که سوونه و رژيږي
د سپرلي ښايست پوره دی، په هيڅ شان و نه کميږي
ګنج يې پس له زيانېدلو، لکه ؤ په هغه شان دی
په خندا محفل د ګلو، لکه ؤ په هغه شان دی
د سپرلي عمر ترې ډېر دی، عباسي دی که رامبېل دی
که ګلاب دی که خاتول دی، که شبو دی که چامبېل دی

را ښکاره چي د لعلونو، جواهرو چرته درنګ* شي
هغه چرې نه کمیږي، که یو لعل ځنې په څنګ شي
څه بې شماره په مخ تېر شول، سحرونه ماښامونه
ځي د وخت له خم نه لاړل، ډېر د ورځو شپو جامونه
څومره ـ څومره شراب ګوټ شول، خولا پاتې دي صهبا* شته
پرونۍ ورځې شوې تېرې، څومره څومره صبا لا شته
هم دا هسي ډېر سرونه، را پیدا فنا شي شخړې
تر هغو د امتونو، ډېر وي مضبوطې جرړې
مسافر پر لاره درومي، او صحبت وینه قایم دی
فرد په شان د لاروي دی، او امت وینه قایم دی
ذات صفات سره د دوارو، یو تر بل دي لري ـ لري
طریقې د مرګ او ژوند هم، یو په سل دي لري ـ لري
فرد د موتې توري خاورې، ګوډاګی غوندي وي راشي
قام زرغون له هغه زړه شي، چي له نوره ډک پیدا شي
فرد شپیته اویا ته رسي، نو بس ټپ شي او لا دپ شي
او د قام په ژوندانه کښې، صدی هم د سترګو رپ شي
ساه او تن سره یو ځای شي، د فرد ژوند له دغه تاره

---

* کان
% شراب.

حفاظت د زور ناموس کړي، د قام ژوند وي له دې کاره
چي اوربشه يې شي تمامه، مرګ د فرد د مېلمه وي راشي
مرګ د قام پيدا له دې شي، چي مقصد د ژوند خطا شي
منم څنګه چي يو تن مري، په خپل وخت هسي ملت مري
غاړه يې اېښې ده اجل ته، لکه فرد چي يو کرت مري
دا امت د مسلمان دی، د خدای نخښه ده نېک بخته
د ده اصل دی راغلی، د "قالوا بلٰی*" له وخته
له اجل نه بې پروا دی، دا قام داسي کلک پيدا دی
لکه غر ولاړ مضبوط ښه، دی له "نحن نزلنا%" دی
حفاظت ته د قرآن يې، دا امت دی پيدا کړی
د قرآن له مداموالي، مدام والي يې دی را کړی✍
يطفئوا✉ يې زله ويلي، چي بهٔ دا ډيوه وي بله
که کفارو خوښوله، او که نه يې خوښوله
دا امت چي دی بې ساري، حق منلو کښې کامل دی

---

* ولکل امة اجل، ژباړه: د ټولو امتو دپاره اجل شته. % انا نحن نزلنا الذکر و انا له لحٰفظون، ژباړه: قرآن موږ نازل کړی دی او هم موږ به يې حفاظت کوو.

✍ د دې شعر لفظي ترجمه به داسي وي:

واوره ذکر يې قايم کړو، د ذاکر له پو نه قيامه
مداموالی د ذاکر شو د دې ذکر له دوامه

✉ يريدون ان يطفئوا نور الله بافواههم والله متم نوره ولوکره الکٰفرون، ژباړه: کفار د خدای د نور ډيوه مړه کول غواړي، خو خدای د دې نور مکمل کونکی دی، هر څو که شې کفا مخالفت کوي هم.

% تيکي.

پر د خدای دوستان مین دی، ورکوونکی د باطل دی
د خلیل د نرغونیو، ارمانونو له نیامه%
خدای را وکښله دا توره، دي برېښونه يې ناتمامه
چي باطل خاورې ایرې کړي، د دې توري تندرونه
چي ژوندی کړي رښتیا والی، د دې آب سمندرونه
موږ هغه چي په یووالي، د یو خدای باندي دلیل یو
د قرآن په حفاظت کښې، په مثال د تېغ اصیل یو
د آسمان چارو ته ګوره، کړو په جن-ګ يې ناقراره
ده په تخر کښې پټه غوندي، فتنه راوړه له تا تاره[1]
دا فتنه چي ې کړه جوړه، ننداره يې ده کوله
په دې يې موږه ازمېیلو، دا يې په موږه ازمېیله
دا فتنه وه چي لتاړ کړل، د پښو لاندي جنتونه
د نظر د توري برېښ يې، څنګه جوړ کړل قیامتونه
دې راوړی ؤ په غېږ کښې، ډېر درډونه غم او شور نور
د پرون نه يې نن بد تر ؤ، چي به ډېر ؤ پکښې اور نور
دبدبه د مسلمان يې، کړه له خاورو سره خاوره
روما هم لیدلي نه وی، د بغداد خبرې واوره
ولې راشه له آسمانه، کوږ روانه تپوس وکړه

(1) د چنګیز فتنه.

له ښه جور او زوړ غاوره، سرګردانه تپوس وکړه
هغه اور د تاتاريانو، اوس د چا ښکلی ګلزار دی
سرې لمبې چې وي ختلې، نو اوس ګل د کوم دستار دی
موږ له ځايه ؤ راوړی، دا فطرت د ابراهيمυ دی
هم د خدایΨ سره ترون مي، له نسبت د ابراهيمυ دی
موږ د لوی انکار په منځ کښې، د ګلونو انبار جوړ کړو
موږ د هر نمرود له اوره، د سرو ګلو ګلزار جوړ کړو
د دنيا انقلابونه، سرې لمبې په غرهار شي
چې زموږ په کښته راشي، د خوږو وږمو بهار شي
د روميانو بازار تود ؤ، د تاوونو وار يې تېر شو
د دنيا د خپلولو، د غارونو وار يې تېر شو
د ساسان ښيښه شوه ماته، په سرو وينو کښې لتاړه
د يونان د شراب خونې، د رونق خبره لاړه
هم د مصر ککرۍ کړې، امتحان د مځکې زړې
د هډونو پنجرې شولې، د اهرام د لاندي سترې
په جهان کښې جوړه، چغه د اذان وه ده او وي به
د مسلم د ملت سيوره، د نشان وه ده او وي به
دې څلور کونجه دنيا ته، عشق آئين دی د حيات

دغه عشق دی یو کوونکی، د دنیا دا سالمات*
دي زموږ د زړه سوزو ته، عشق له دې سوزه ژوندی دی
دی د "لا الٰه" په سر کېنې، عشق له دغه ځلندی دی
که غوټۍ غوندي دلګیر یو، کور د هر زړه د ارمان وي
خدای Ψ دي نه کړي که موږ نه یو، بس ویجاړ به ګلستان وي

%%%

# بې له قانونه د هيڅ يو ملت نظام نه جوړيږي

## او د محمد ρ د ملت قانون قرآن دی

آئين پنګه د ملت ده، که تر لاسه و وتله
خاورې والوتې په باد کېنې، سره و شلېدل و بله
مسلمان که دی شته شوی، دا ژوندون يې له آئين دی
سل خبرې به وي نورې، خو دا سر زموږ د دين دی
په قانون شوې پاڼې غوندې، ګل چنه څه ښايسته شوه
د آئين سنبل تر تاؤ شول، نو ګلونه ګلدسته شوه
د خولې برغ چې په قانون شي، ډېره ښه نغمه پيدا شي

* سالمات" يعني تركيبي اجزاء چې د كومو جزونو څنې جوړ شوی وي.

هغه ږغ چي ېې قاعدې وي، بيا نو بس خوشې غوغا شي
ساه زموږه په مرۍ کښې، ده چپه غوندي د باد
باد چي بند شو په شپېلۍ کښې، شو محفل يې په ږغ ښاد
خبر ي-ې چي آئين څه وي، څه کړه داسي دبدبه ستا؟
دا کوم راز دی په دنيا کښې، چي شوه پورته مرتبه ستا؟
دا هغه ژوندی قرآن دی، چي حکيم او بې مثال دی
چي حکمت يې هم قديم دی، هم بې شکه بې زوال دی
يوه پټه خزانه ده، د رازونو د حيات
له قوته يې کچه پوخ شي، بې ثبات مومي ثبات
نه يې ټکی کښې چي شکڪ* شته، نه يې بدل د مرغلرې
نه يې شته د اياتونو، په خبرو☒ کښې خبرې
د ده زور د خولې خبره، کړي په کاڼي باندي کرښه
کډولې د ده له زوره، کاڼی مات کړي لکه پرخه
بند په بند بنده بندي کړي، پس له هغه يې آزاد کړي
د ښکاريانو په نصيب کښې، ژړاګانې او فرياد کړي
د انسان نوعي ته راغلو، دا پيغام چي آخرين دی
د راوړونکي شان يې ګوره، چي رحمت د عالمين دی

---

* ذالك الکتاب لاريب فيه، (سورة بقره)
ژباړه: دا کتاب چي دی نشته هيڅ شك په ده کښې، چي د طرفه د الله تعالٰی نازل شوی دی

☒ لا تبديل لکلمٰت الله، ژباړه: د الله تعالٰی په خبرو کښې هيڅ فرق نه وي.

چې هيڅ قدر د چا نه وي، په عالمو کښې يې ګران کړي
چې په مځکه خدای Ψ ته پرېوزي، هغه سر بره آسمان کړي
لار وهونکي رهبران شول، دا د ده په حفاظت شول
په تعليم د يو کتاب دوی، صاحبان د عدالت شول
بېدياګانې کچ کوونکي، په رڼا د دې څراغ کښې
رڼاګانې د علمونو، هر يو راوړي په دماغ کښې
داسي پېټې ✍ چې نه مځکې، آسمانونو کړلو پورته
او نه يې لوړو دنګو غرونو، کښېښنو تن دبدبې زور ته
سرمايه د اميدونو، ځای کړه مځکې نه آسمانو
څنګه ځای کړه په سينو کښې، دا زموږه ماشومانو
د سور اور غوندي تاؤ ژني، هغه څه وچې ميرې وې
چې د لمر په تاؤ يې سترګې، لکه وينې تکې سرې وې
د هوسۍ ترپې ورځار شه، هسي يې وه زغلا د اوښې
تاؤ په دم او اور په پښو کښې، د هغې بېديا د اوښې
خوب پر مځکه په سر پورته، د کجورو پرنګې سيورې
تل د کډو لېږدولو، وه نېټه د کاروان ستورې
سر په ورانو په ويجاړو، تل کالي کډې به ولې

---

✍ انا عرضناالامانة علی السمٰوٰت والارض، ژباړه: او ببشکه موږ دا امانت (بار) زمکي او اسمانو ته پيښ کړو.

بې مقصده ګرځېدلي، نه يې کورونه نه يې کلي
د قرآن ګرمۍ تاوده کړل، زړونه يې کړل د دوی بکرې
د ختلي سيند موجونه، شوې قرارې مرغلرې
له کتابه يې سبق و لوست، هله ورغلل تر ځايه
بندګان کوڅې ته راغلل، باچهان لاړل له خدايهΨ
اللهΨ دومره ډېر څه ورکړل، چې شاهۍ يې و بخښلې
هم ګدۍ د جمشېدانو، د دوی پښو کښې پرېوتلې
د پښو دوړو يې آباد کړل، ډېر ښارونه وطنونه
د هغو له يوه ګله، پورته شول سل چمنونه
اې هغو چې را حصار مو، په رسمونو کښې ايمان دی
اې هغو چې لار او چار مو، کفر تاسو ته زندان دی
دين[*] مو کړلئ◌ برخې برخې، شوئ◌ ټولۍ- ټولۍ ويزاره
د "الٰی[✉] شيئ◌ نکرا"، نن ده نيولې تاسو لاره
اې وګړيه که غوارې، چې د ته مسلمان ژوی
څه امکان يې هډو نشته، چې به بې له قرآن ژوی
صوفي ډوب په پشمينو کښې، چې په حال کښې وي بدحال مست
ځان تر ورك وي په نشه کښې، په سندرو د قوال مست

* فتقطعوا امرهم بینهم زبراً، ژباړه: دوی تر خپل منځ دين ټوټه ټوټه کړو
% تختونه
✉ یوم یدع الداع الٰی شيء نکر، ژباړه: په هغه ورځ به بلونکی ؤ، بلی د هغه سخت ناګوار څيز په لور يعني دوزخ.

عراقي د شعر اور يې، د زړه خونه سوې يوړه
د دې خوارو محفلونو، او قرآن نه راڅي جوړه
دي تڼري قالينونه، كه تاجونه او رنګونه%
د ده فقر درويغژني، ټولوي ترې قلنګونه
يو خلوه ور د قصوباتو دی، مکرجن رغړوي ګټې
وړه خوله لوېي خبرې، معنا هيڅ جملې يې غټې
د خطيب[✍] او ديلمي نه، دی کوي تل وينا ګانې
د مرسل ضعيف او شاز نه، دی کوي سل ويناګانې
له قرآنه تلاوت کړه، ځای لري پسې وردرومه
که پر دغه لار روان شې، څه چې غواړې هغه مومه

%%%

## د پربوتلو په وخت کښې داجتهاد[*]

## ځنې تقليد[✉] ډېر ښه دی

موجوده زمانه بده، د فساد فتنو پړې ده
بې پروا طبعه يې ګوره، افت ګړه خونړې ده

---

[✍] خطيب او شاز د محدیثونو نامې دي، مرسل، ضعيف او شاز د حديثونو قسمونه دی.
[*] كوشش كول.
[✉] بل پسې تلل.

د زړو قامونو غونډه، ده د دې تر لاسه ورانه
ګوره ونه د ژوندون يې، وچه کړسه له خزانه
د دې پړق خطا کړو داسي، بې خبر له ځان او کاره
زموږ ساز يې داسي سست کړو، بږغ يې نه خيزي له تاره
دی زموږ له زړونو يوړو، هغه تاؤ او هغه اور زوړ
روښانتيا د لا ا لٰه او، هم يې يوړو د زړه زور زوړ
ژوند چي هر کله کوټه شي، قوت مات شي بې ثبات شي
نو ملت هله ټينګيږي، په زړه لاره چي مات شي
د نيکونو لاره واخله، چي په دې کښې غونډېدل دي
د تقليد معنا تنظيم دی، د ملت را پنډېدل دي
د خزان لغړې څانګې، چي نه پاڼې نه د بار شته
چي له ونې بې له نشې، په خزان پسې بهار شته
سمندروې ځان دي وچ کړو، غلی مه شې خوره د زيان غم
که وروکی جر خوړلی يې، ويده نه شې کړه د ځان غم
ګني بيا د لوړو غرونو، چلې راشي سمندر شي
ګني بيا د طوفانو يو، قلزم په غوره هر شي
که د زړه سترګې لرې ته، دي صحي روايتونه
له احوال د اسرائيلو*، څنې واخله عبرتونه

* يهوديان. % نچوړول.

څنګه تريخ د هغو ژوند ؤ، دي تودې سرې پر تېرې
شواخون د هغو ګوره، تېرېدې پرې سختې ډېرې
وينه شوه د هغو موره، نه يې پله نه رګ ژوندی ؤ
که درشلې وې سوونه، د دوی يکې يو تندی ؤ
د آسمان خبر که هر څو، و ښنتېزل٪ لکه د کور دوی
د موسیٰ هارون يادکار وه، فنانه کړل هيڅ ضرر دوی
آتشين بزغ يې بې سوزه، زېر نه بم وه پکښې پاتې
خو ختلي ترسا نه وه، لا څه دم وه پکښې پاتې
جمعيت د دوی چې خور شو، او په خپلو کښې تار۔ تار شول
چې پر تللي مشر بر ؤ، دوی روان پر هغه لار شول
زړه غونډه د خوره شوه، اې چې ستا خوبې د بل شوه
ستا سينه کښې چې روښانه، د ژوندون ډيوه وه ګل شوه
زړه تختیَ دي ښه کړه پاکه، معنا ليک پرې د توحيد کړه
که تدبير کوې د چارې، ت-ګ پر لاره د تقليد کړه
په دوران د پرېوتو کښې، اجتهاد دی له تاوانه
بس بساط د قام و نغاړي، ورکوي يې له جهانه
عالمان چې کم نظر وي، د هغو له اجتهاده
پخوانو پسې هم غوره، هم محفوظه اقتدا ده
ستا د پلار نيکونو عقل، هوس نه وه سولولی

چرې کار د پاکو خلکو، په عرض نه وي لرلی
د پاکانو فکر وریشي، ډېر بې شانه نرې ثار
د هغو پاکوالی بوزي، هغوی خوا ته د سردار
نه دی پاتې د جعفرؒ شوق، د رازيؒ کتني څه شوې؟
د عرب ملت آبرو او ښې، خوبۍ وي پاتې نه شوې
شوه په موږه باندي تنګه، د پاك دين باچهي لار نن
هر حریص د دین رازدار شو، کړې کرښې کاږي مار نن
اې چي لرې شوئ له دین نه، ناخبر د دین په کار يې
ټول په يو قانون راغونډشئ، دغه راز دی که هشيار يې
د ژوندون په نبض پوهه، حکیم راکړل ګل او قند
چي تر منځه اختلاف، مي ده بیاتي* د خواږه ژوند
په یووالي کښې عزت دی، هم دي ژوند دی مسلمانه!
له یووالي جوړ ملت دی، هم ژوندون دی له قرآنه
موږه څه یو توري خاورې، او هغه خو زړه آګاه دی
لاس ور واچوئ په ګډه، چي هم دغه حبل الله دی
د هغه د لاړ ګوهر شه، وزه مه له دغه تاره
ګني ځه په باد کښې خور شه، د بیدیا عبث غباره

%%%

* قېنچي.

# د ملت د سيرت پوخوالی د خدای Ψ د قانون په منلو کيږي

شريعت کښې بله- بله، معنا مه غواړه خطا ده
مرغلره کښې نور څه وي، تموله بس رڼا- رڼا ده
خدای Ψ پخپله جوړه کړې، پکښې نشته هيڅ خبره
هم بهر ده مرغلره، هم دننه مرغلره
غلط مه شې نور څه نه دي، رښتيا علم شريعت دی
د سنت اصل که ګورې، نور څه نه دي محبت دی
د مېړه دپاره شرعه، بې مثاله سرمايه ده
مقامونه يې ډېر لوړ کړي، د يقين اندر پايه ده
او هم دا د خدای قانون دی، چې ملت ترې نظام مومي
د نظام له مضبوطوالي، خوشحالي او دوام مومي
دي په علم کښې د شرعي، بې مثاله طاقتونه
که روڼ لاس دی که امصا ده، يا که نور دي قوتونه
تا ته وايمه که واورې، چې دی راز د اسلام شرعه
هم انجام د اسلام شرعه، هم آغاز د اسلام شرعه
اې چې ته امانتګر يې، د پاک دين د لوی حکمت
دا د زړه په غوږو واوره، ده نکته د شريعت

مسلمان چي کړي څه چاره، که دا وي له مستحبه*
څوك د ده کړي بنده لاره، هيڅ بې هيڅه بې سببه
مستحب وه ګڼي فرض، وه تړي د فرضو نيت
په هيڅ شان نه په شا کيږي، ژوندون وګڼي قدرت
که په ورځو کښې د جن-ګ بيا، د دښمن لښکر ونه شي
تر منځ دا ګومان پيدا شي، چي به روغه ګڼي وه شي
توري و منډي په تيکو، ګراني کړي په ځان آساني
له يوه سره تول وران کړي، پناه ځای او قلعه ګانې
څو بيا نه وي سنبال شوي، څو لښکر يې بې نظام وي
ورختل تر هغه وخته، د دښمن په ملك حرام وي
څه په راز يې پوهېدلی، دا فرمان چي د کتاب دی
ژوند چي ډك له خطر وي، هغه ژوند په ژوند حساب دی
شرعه غواړي که ورګډ شي، په يو تود ميدان د جن-ګ کښې
د لمبې غوندي تاويږي، کاڼي دل کړه په غورځنګ کښې
ستا د متو زور پرې ګوري، غر دي ودروي په وړاندي
اې چي ځان ته مين واي-ې، يو ازمېښت کوي درباندي
درته وايي چي هن غر دی، دا رانجه کړه که باتورې

* چي په کولو کښې يې ثواب وي، په نه کولو کښې يې هيڅ ګناه نه وي، يا دا چي فرض د خدای حکم دی، سنت د رسول الله طريقه ده او مستحب د اصحابو طريقه ده.

شابه ويلي كړه دا ګټي، په ګرمۍ د خپلي توري
جوړ له جوړه سره ښايي، څه ناتوانه خواره مېښنه
د هغه ساري خو نه ده، كه په شنه زمري شي پېښنه
په چرچڼو چي شي روږدې، هغه باز ووځي له كاره
د منګل د ناستې نه شي، خوار زبون شي له دې ښكاره
نو صاحب د نيغې لارې، د ښه بد نه خبر داره
د قدرت دغه نسخه يې، و ليكله ستا دپاره
له عمله يې ستا په تن كښې، پلې د اوسپنې كولې
څنګه ي-ې ته په دې جهان كښې، په د رانه ځاى كښېنولې
كمزورتيا نه لري باسي، مضبوطوالى ډېر وي ستا
له اوچتو دنګو غرونو، هم كلكوالى تېر وي ستا
هر څه دين د مصطفٰىρ دى، يو قانون د ښه ژوندون دى
شرعه سمه پاكه لار ده، تفسير شوې د قانون دى
ته كه پروت يې لكه مځكه، وړې دې پورته له آسمانه
خداىΨ چي څو رنګې تا غواړي، جوړوي هغه له ستا نه
د هغه صيقل كړي جوړه، له تبۍ رڼه هينداره☼
هم له اوسپنې زړه زنګ وړى، دې دا هر څه ستا دپاره
د نبيρ شعار دولت دى، چي دولت له لاسه لاړو

☼ آئينه.

بس يو رمز د بقا ؤ، د امت له لاسه لاړو
هغه هسکې څوکې بوټي، خښ ولاړ د موند په زور
صحراګانې کچ کوونکی، مسلمان د اوښې سپور
چي تر څو يې قدم ايښی، پاکه مځکه د بطحا کښې
پائيد لوغوړېدلو، په تاوونو د صحرا کښې
خو اوس داسي خوار و زار دی، چي بهر شو له هيواده ☼
د سپېلني غوندي په وير دی، د عجم له ساړه باده
دا هغه چي ماتول به يې، شنه زمري لکه بزې خوارې
اوس په پښو کښې د مېږي هم، له دردونو کړي کوکارې
دا هغه چي په تکبير به يې، شنه او کلك کاني اوبه شول
د لمبلو په تارو اوس دوی، د ويرې لکه مړه شول
دا هغه چي ارادو يې، غرونه ؤ په خل شمارلي
اوس که لاس او پښې يې روغ دي، په توکل يې دي سپارلي
دا هغه چي به يې دښمن ته، د څټ وجې ماتولې
په ضربونو* د سينې يې، اوس د زړه تاندي و شلولې
دا هغه چي په هر ګام کښې، يې جوړې څومره هنګامې کړې
ګوتکښې کښې به يې پښې کړې، غوندي اوس يې هيري دا نامې کړې

☼ وطن.

* دا د موجود غلط تصوف خبري دي، چي شاګرد ته استاد څه وظيفه لا طريقه وښيي، هغه په يو خاص طريقه په پټه کوټکي کښې وايي، له سينې او زړه يو خاص آواز را وباسي.

دا هغه چي له فرمانه يې، دې دنيا ورځ و موندله
سكندر ؤ كه دارا ؤ، ولاړ دوی ته په درشله
كوششونه يې ځومره ډېر وو، خو دوی صبر ؤ په لړه
تر دې حده صبرناك ؤ، وياړ✉ كولو دوی په لوړه
شيخ احمد يو ښه سړی، ؤ نازولی د دين توره
چي به لمر رڼا غوښتله، د هغه د زړه له نوره
په پاك ځلي يې غوړېدلي، رنګارنګ ګلونه ښايي
چي له خاورې يې ګل ټوكيږي، لا ا لٰه په ژبه وايي
هغه اووې خپل مريد ته، چي غوږ ونېسه اې ځويه
د عجمو له خيالونو، لرې۔ لرې تېښته بويه
كه د فكر په زانګو كښې، له آسمان ځنې بر لاړل
د نبيρ د دين له حده، اې بچيه! بهر لاړل
دا د زړه په غوږو واوره، نصيحت د هغه ځوان دی
نازولی چي د خدا یΨ ؤ، له ملت د هغه ځوان دی
په زړه واچوه دا حقه، چي ښه كړونی پهلوان شې
په عرب پوري ننې شه، چي رښتونی مسلمان شې

%%%

---

✉ فخر.

# د ملت سيرت د محمدρ د آدابو په اخستو ښـ ايسته كيږي

يو فقير نارې وهلې، كوڅه کې وه پر سر اخستې
د قضا غوند نه تلونکی، وه يې ذمه د ور اخستې
سوخت شوم ما پر كوتك كښېښېو، شو په وير ږغونه يې لوی شول
ګوډی يې د مشليدو د تخر نه، څه چې ؤ هغه ترې توی شول
د ځوانۍ په سر كښې عقل، د بې سول ياد ويده وي
لېونی كله پوهيږي، چې بد څه وي او ښه څه وي
په دې كار مې پلار خفه شو، ما كتل حال يې بدل شو
كه ي-ې مخ تازه تك سور ؤ، د رېدي يو مړاوی ګل شو
په سينه كښې زړه لړزان شو، هم يې ينه دړې- دړې
اسويلې يې له خولې لاړول، په صورت د شنې لوخړې
ستركې شوې د ده را ډكې، پكښې اوښكې ستورې- ستورې
پر ښو وځلېدلې، توې شوې پرخه لكه ووري
د هغه مارغه په حال شوم، چې په ځاله كښې لړزان وي
چې چيچل كوي بادونه، او موسم پرې د خزان وي
پوه په خپله ناپوهي شوم، تا به وې چې مې سا لاړه

کجاوه شوه تشه پاتې، او د صبر ليلا لاړه
راتې اووې چې اې زويه، صبا ورځ چې د قيامت شي
هغه دوست د خدایΨ ولاړ وي، اوراجمع ټول امت شي
ايسته ډله وي ولاړه، په ملت کښې د غازيانو
ايسته ډله وي ولاړه، د قرآن د حافظانو
شهيدان بهٔ هم ولاړ وي، د دين ستنې په يو لوري
په آسمان کښې د ملت دوی، ځلېدونکې لکه ستوري
زاهدان به هم ولاړ وي، عاشقان بهٔ هم ولاړ وي
ګناهګار به هم رپيږي، عالمان بهٔ هم ولاړ وي
چې په دغه حشرګاه کښې، دا فقير کړي چيغه پورته
په ژړا په چغو سر شي، ګته نيسي زما لور ته
بې سورلۍ د صراط ګران دی، اې زړګيه اې ناپويه
پيغمبر که ما ته مخ کړي، زه به څه وايم اې زويه
که وا وايي چې "خدای تاته، مسلمان زوی ؤ سپارلی
او زما له مدرسې غه، تش لاسونه دی وتلی
ستا په سر دغه يو کار ؤ، هغه سم قدر هم نه شو
چې يو خټ د تور خاورو، بنيادم قدر هم نه شو"
د کريم نبيρ له خولې چې، پا غوندي د ملامت وي
يو خوا دا شرم او ويره، بل خوا طمع د رحمت وي

وې د فکر پر آس سپور شه، اې بچيه! ورکړه منډه
د خير البشرρ په مخکښې، ياده کړه د امت غونډه
چي په سپينه بږيره هلته، په بدحال يم د زړه سره
په رپا دګا ولاړ يم، هم اميد او هم مي وېره
دومره زياته نه ښايېږي، چي زوی کاندي په پلار هسي
ما بنده د خدایΨ په وړاندي، مه وراستوه خوار هسي
زويه ته لکه غوټۍ يې، د نبيρ د بڼ آزاده
ښه و غوړېږه لکه ګل شه، د هغه د سپرلي باده
ګله! رن-ګ و بوی ته دواړه، له بهار د حبيبρ واخله
د اخلاقو د قلزم نه، څو چي کېږي نصيب واخله
پير د روم چي په قطره کښې يې، اباسين پروت دی قرار
څنګه ښه يې دی ويلي، مرغلرې يې دي ګفتار
"خپل ژوندون مه لرې باسه، د نبيانو له سروره
تکيه کمه په خپل ګام کړه، مه يې ګڼه له خپل هنره
مسلمان ځای شفقت دی، سر تر نوکو محبت دی
په دنيا کښې بې ضرره، لاس و ژبه يې رحمت دی
چي سپوږمۍ پر سر د ګوتې، لوی رحمت کړله دوه ځايه
شاباش او اخلاق يې دومره، لوړدي چي ستايلي دي له خدايهΨ
د هغه د لوړ مقامه، که شلېدلی اوسې لرې

ته زموږ له غونډې نه يې، پکښې نشته څه خبرې
او که نه زموږ سکه يې، يوه وينه يو مو رګ وي
يو مارغه د دې چمن يې، يوه ژبه يو مو بړغ وي
نورا ګډ شه په بوستان کښې، جدا مه اوسه بې ځايه
يوه څانګه باندې کښېنه، په شريکه نغمه وايه
د دنيا دا هر څه- هر څه، چې حساب دي په ژوندو کښې
لکه مرې اور په اوبو کښې، داسې هر څه په پردو کښې
سندر غاړيه بلبله، بړغ بلبلو سره يو کړه
په چمن کښې سيل ته ګوره، نو الوت په هغه رو کړه
په اوبو کښې ايلې ژوې، ولې لاندې د درياب يې؟
ستا ژوندون خو هلته ښايي، ځه صحرا ته که عقاب يې
او که ستورى يې ځليږه، رڼا کړه له خپل آسمانه
ښه هيڅيري مه وباسه، ته د خپلې خوا او شا نه
که يو څاڅکى اوبه يوسې، له نيسانه اې مينه
په فضا د ګلستان کښې، هغه وه ساتې دننه
دې دپاره چې د پرخې، غوندې دى د ګل والى شي
يا ي-ې ځاى لکه وړوکى، د غوټۍ تنګه ځولۍ شي
بيا غه تار د پلوشو چې، يې تل سحر له نوره غړي
له اثره يې په دې مځکه، بوټي- بوټي غوټۍ سپړي

د دې څاڅکي له جوهر که، پر عنصر د نم و زېبېښتي
له جزونو نا قرارو يې، يوسې خوند د تکو تېښتي
شو د خړو اوبو څاڅکي، ستا اميد د مرغلرې
د خوارۍ نه دي ځارېږم، خو سراب دی هغه لرې
څاڅکي واچوه درياب ته، چي ګوهر درته تابان شي
په رڼا وځلېدلو، لکه ستوری د آسمان شي
د نيسان هر هغه څاڅکی، چي بهر دی له دريابه
لکه غوټه ده د پرخې، په خس خل پرته بې آبه
پاك سرشت د مسلمان هم، په مثال د يو ګوهر دی
دا رڼا ځلا او برېښ يې، د نبيρ له سمندر دی
ته که څاڅکی د نيسان يې، د نبيρ ځولۍ ته ورشه
د هغه په سمندر کښې، ځلېدلی يو ګوهر شه
لمر که روڼ دی په دنيا کښې، ته تر يو په سل رڼا شه
هغه وي او کله نه وي، ته څښتن د تل رڼا شه

%%%

## د هر ملت ژوند محسوس مرکز

## غواړي او د اسلام ملت مرکزيت "الحرام" دی

راشه- راشه چې دې پوه کړم، زه په اړ د ژوندانه نن
ټول رازونه درته سپړم، لکه لړ د ژوندانه نن
لکه خیال چې بې ټیکاؤ دی، هسې ژوند په خپله ټبنتي
د یو اړخ د یو لور نه، ساتي خپله لمن نغښتې
دی حصار ؤ توند جهان ته، آخر راغلو ژوندون څنګه؟
او د ده د وخت نه زیږي، صبا څنګه پرون څنګه؟
اول وګوره خپل ځان ته، که د سترګې وي ځیګره
ته یې پرله پسې تېښته، اې له ځانه بې خبره
تر پټ ځان ښکاره کولو، دا لا نه اخلي اور لړونې
سره لمبه د ژوند وي پټه، خپل لوګی کړي تر پړونې
چې تر څو د ده دا تېښته، یو سکون دی تر نظره
جوش د ده د سیند دی موره، چې لیدای شي مرغلره
ژوند چې ساه په بره راکښه، په سینه کښې اورخوندي شو
دا په څانګو کښې نه وینې؟، هغه اور دی خوریدي شو
اې د شل فکر څښتنه، چې پوه یې په لمر او سیوري
چې د رن-ګ الوت ته ګل وایې، تا خو تور کړلو ور پوري
ژوند د جالي مرغۍ نه دی، او نه جاله جوړول کړي
لکه رن-ګ دی د نکریځې، بل څه نه کړي الوتل کړي
هم حصار دی هم آزاد دی، که هر څو دی په پنجره کښې

ورسره هم په فریاد دی، که يې خوند شته په ناره کښې
په څانګونو الوت وینزي، هر دم نه چې کله۔ کله
خپلو کړو ته څه چل ګوري، وې دا چا؟ وې چې په خپله
پکښې واچوي ارکې، کار په خپله ځان ته ګران کړي
او بیا پرانځي دې غوټې، هغه ګران په ځان آسان کړي
پښې په خاورو کښې کړي ښخې، د توند ژوند تو‌ندې ګڼه شي
دا ده پاره د دې کړي چې، د ت-ګ شوق يې دوه دوڼه شي
د سازونو یو جهان پروت، د ژوندون د سوز تر خوا دی
هم د ده د نن نه زیږي، که پرون ؤ که صبا دی
دم په دم دي ګرانوونکې، ګران په آسانه تېرو‌ونکې
نوي۔ نوي لومې کاندي، نوي چارې ډېروونکې
په هر خوا کړي منډې ترنډې، لکه بوی دی لا رشي راشي
چې مېشته شي په سینه کښې، دغه ژوند دی نوم ي-ې ساه شي
خپل ي-ې ځان خپل ي-ې تارونه، په خپل ځان باند ودل کا
پلوشه شي غوړېشه شي، ځان ته غوټې اچول کا
د یو زڼي غوندي دی هم، مېوه پاڼې لري ننه
چې و ځان ته کتل وکړي، نو شي دنګه ګوره ونه
دی په خاورو په اوبو کښې، عزت څومره څه پیدا کړي
لاس او پښې د تماشو هم، پکښې سترګې زړه پیدا کړي

د دې تن په کوتګۍ کښې، چې دننه خوښ شي ژوند
نو دی روغي۔ روغي غونډې، را پیدا کاندي د خوند
چې ژوندون په دې دستور شي، يو مرکز ته وکړي غونډه
امتونه ترې جوړیږي، دا اوږده او هم ده لنډه
د پرکار ګېڼه که تن دی، نو مرکز يې لکه ساه ده
که ي-ې نقطه په منځ کښې نه وي، بیا د ده کرښه خطا ده
که نظام که يو کېدل دي، قام يې مومي له مرکزه
که تول عمر پائیدل دي، قام يې مومي له مرکزه
چې زموږه ده رازداره، هم مو راز هغه کعبه ده
چې زموږ دپاره سوز دی، او هم ساز هغه کعبه ده
په سینه* کښې يې موږ پاللي، خپل روحونه هغه دا ده
موږه ټول لکه يو تن يو، دا په موږ کښې خوږه ساه ده
که مو باغ تازه لېدای شي، له شبنمه د کعبې دی
اوبه خور مو په پټي کښې، له زمزمه د کعبې دی
د هغې داسي ذرې دي، لمر ترې مومي رڼا ګانې
لمر مدام پکښې غوپې خوري، د نور سیند يې فضاګانې
که دعوه ده هغې کړې، نو دا موږه پرې دلیل يو

---

* داسي هم کېدای شي، خو په يو شعر کښې ملت او کعبې دواړو ته روح ویل د اقبال د مقام ځني کوزه خبره ده:

لکه روح يو دی پاللی په سینه کښې پر مین موږ
دا زموږه ساه ده او په مثل د يو تن موږ

هسي پرله پسې راغلو، له دليلو د خليلυ يو
شهرت چغه زمونږ پورته، په جهان کښې دې حريم کړه
مونږ حادث* يې کړو يو مزی، شېرازه يې پر د قديم کړه
ټول په يو زړه ځنې چورلي، د ملت د زړګي سر دی
دا ملت لکه سحر دی، د پنجرې مرغۍ يې لمر دی
په حساب د هغې مونږه، له يووالي ځنې ډېر يو
خود مو ځکه داسي پوخ دی، چي يووالي کښې را ګېر يو
د دې کور سره تړليه، که ژوندی يې دا يې ځکه
چي له دغه خونې چورلې، مضبوط هسي پا يې ځکه
د دنيا د امتونو، لکه ساه ګڼه يووالی
په حرم کښې که پټ راز دی، نو بس دا ګڼه يووالی
د موسیٰυ قصه کړه ياده، څه انجام يې د امت شو
واوره۔ واوره مسلمانه، هغه تا وته عبرت شو
چي مرکز د هغو لاړو، نو شول څنګه خوار و زار
د يووالي تار يې وشلېد، ځکه دوی شول تار په تار
دا هغه چي رسولانو، ؤ په غېږو کښې لوی کړي
جز يې پوه د کل په راز ؤ، په دنيا کښې ؤ نومورې

---

* پيدا کړای شوی. مخلوق.
خدای پاك چي نه چا پيدا کړی نه تر څوك پيدا دي.

وخت په غوږ د دې امت کړه، ور خطا توده څپېړه
ژوند يې سرې وينې له سترګو، و څڅېد په ګونه زېړه
نم ترې لاړوکور☼ ي-ې وچ شو، که غونچې به يې شوکولې
خاور يې داسي شوه بې خونده، ولي يې هم نه ټوکولې
سپک او ورک بې کوره اوره، زاره چاۀ د نېستۍ وهلي
نه يې خوله نه وينا ګانې، نغري نه يې کور ۀ کلي
بس نو لاړه ډيوه مړه شوه، وير ژړلي يې پتنګان
د هغو قيصه چي لولم، زلزله مي شي ټول ځان
د چور لند آسمان په توره، پرهر ژلو خوار و زارو!
اې د شک شيبې او وهم، په کوړګې کښې راحصارو!
دا جامې موکړئ ور ايسي، په دی تن جامه احرام کړئ
را پيدا مو سپين سحر بيا، له دوندونو د ماښام کړئ
د نيکونو غوندي پرېوځي، په يو ور سجده۔ سجده شئ
داسي ورک په محبت کښې، نوک تر سر سجده۔ سجده شئ

پخوانو مسلمانو، عاجزي داسي پيدا کړې
چي نيازونو يې خورې ويرې، دنازونو په دنيا کړې
چي په سرو غنو روان شول، بې پرواه د خدایΨ په لا رکښې

---

☼ انګور

# روستونې جمعيت د ملت د نصب العين

# په ټينګ نيولو کښې دی او د محمدρ د امت نصب العين د توحيد حفاظت او خورول دي

کاينات* هم لري ژبه، که کړې غوږ زما په لوري
عملونه د ژوندون يې، هم لفظونه دي هم توري☼
که په تار د مدعا يې، تړون وشي برابر شي
نو ژوندون به د چار بيتې، يو ډېر ښکلی غوندي سر شي
مدعا کومي مهميز⌧ شي، موږه يې و تړو په پونده
نو زموږه توره اسپه، به سيلۍ غوندي شي تونده
مدعا هغه يو راز دی، ژوند مونډلې ترې بقا ده
کې قوت خوره پاره وي، غونډوونکې يې مدعا ده
چې هر چرې دا حيات، د مقصد سره آشنا شي
يو ضابط او سمووونکی، د اسباب د دې دنيا شي
دی چې ځان ورته تابع کړي، په مقصد پسې ورتلل کړي
د هغه دپاره چوڼ کړي، خوښول نا خوښول کړي
ت-ګ په سيند کښې د مانګانو، تل په لوري د ساحل وي
چا چې لارې دي اخستی، د هغه پر سر منزل وي

* دنيا. ☼ حرفونه.
⌧ د سپور په پونده اوسپنه.

د پتنګ په زړګي داغ، له ارمان د سوځېدو دی
هر چور لك يې له څراغ، له ارمان د سوځېدو دی
كه مجنون په ورانو سر شو، دی او ګومره څه صحرا ده
كجاوه د ليلا ګوري، بس هم دغه يې مدعا ده
چي زموږ كومه ليلا ده، ك مېشته وي په آباده
بيا به ولي پكښې ښنه بډو، چي صحرا خوشې صحرا ده
په عمل كښې مقصوديت پټ دی، لكه سا وي په وجود كښې
حاصلېږي څنګه څو تل✉، هر عمل ته په مقصود كښې
په رګونو كښې دا منډي، چي د وينې ستا زما دي
دا همه توندئ له پاره، د موندل د مدعا دي
ژوند د دې له ډېره تاوه، دا خل ځان و سوځولو
سره اورونه غونډول كا، ژوند په شان د رېدي ګلو
مدعا لكه شاباز دی، ږغوي ساز د همت دا
مدعا هغه مركز دی، چي راكاږي هر قوت دا
مدعا لكه د شا ده، ښوروي دا د قام غړي
په يوه كتنه دې وي، په زرګونو ستركي وړي
د مقصود معشوقه شمعه، پسې ته ورك لېونی شه
پتنګ هسي ترتا وېږه، د دې مخ ته سپېلنی شه

✉ كيف و كم.

څه خوږ بږغ څنې را خيزي، ساز نواز دا قم هوښيار دی
د معنا شاباز يې ايښې، اوره څنګه په خوږ تار دی
"لاروی که پښې ته لاس کړي، اغزی اخلي د زړه سره
په دې لږه حصارتيا کښې، محمل ووځي له نظره"
که يورپ قدر د سترګو، لارويه ته غافل شوې
په شا لاړې تمبېدلی، سل فرسنګه له منزل شوې*
دا وجود ډېر لرغونی دی، چې يې عالم بولي قامونه
له ګډون د عناصرو☼، د ده جوړ شول اندامونه
سل بنبونه نچې يې لو کړې، يو فرياد آزادول شو
سل چمنه يې خړوب کړل، يو زرغون تر رېدي ګل شو
څومره نخښې يې واچولې، هر نخښه يې بيا کړه ورانه
په تختۍ د ژوندانه يې، ورروستی جوړ کړې مسلمانه!
ژړاګانې يې کړلې، په پټۍ کښې د خپل ځان
چرته ډېره موده پس يې، حاصل وشو يو اذان
په مودو ۇ ده تود کړی، د احرارو سره جن-ګ
د خدايانو د روغژنو، سره ناست ۇ څنګ پر څنګ
دانه تخم د ايمان يې، آخر خاوره کښې کړه خښه

---

* رفتم كه خار از پاكشم محمل نهان شد از نظر :: يك لحظه غافل گشتم و صد ساله را هم دور شد

☼ اور، اوبه، خاوره، باد، دا څلور عناصر بللی شي.

کليمې ته د توحيد يې، دغه ستا ژبه کړه خوښه
د عالم دورونه ګرځي، نقطه ګاه شوه لا ا لٰه
د عالم د دومره کار، انتها شره لا ا لٰه
دا د لا ا لٰه زور دی، چې آسمان کړي چور ليدنې
هم تر دې د لمر تاوونه، ځليدنې بلېدنې
په دې زور بحر پيدا کړي، مرغلرې داسې- داسې
هم د سيند موجونو وکړې، غورزې پرزې هم بډا سې*
هم له دغه خوږ نسيمه، توري خاورې لکه ګل شي
که يو موټی د بڼو وي، له دې سوز ځنې بلبل شي
چې رګونه تر د کورو، دي روښانه دغه سوز دی
صراحي د تورو خاورو يې، کړه تابانه دغه سوز دی
پکښې نغمې دي څه سوې، چې تاوونه يې دي بې شانه
د عالم رباب دي غواړي، شاباز لاس کښې آدم خانه
په رګ - رګ کښې دي ږغونه، لکه وينه زغلي پرېږده
هر څه پرېږده پاڅه- پاڅه، دا شاباز دي په تار کښېږده
او دا ځکه چې تکبير کښې، راز و ستا دشته کېدو دی
ستا مقصود د لا ا لٰه د، حفاظت او خورېدو دی
چې تر څو د حق دا چغه، په عالم کښې نه شي عامه

* مد و جز.

که رښتونی مسلمان يې، تل به وينې يې بې آرامه
ګله هغه سرې څه وي، چې له ځانه خبر نه وي
ستا☼ خطاب عادل امت شو، وايه نور عزت به څه وي
د مخ مالګه د خپل وخت يې، روښنايي د خپل زمان يې
په قرآن کښې ته شاهد، په قامونو د جهان يې
پوهنده ؤ نکته دانو، لره عام بلنه ورکړه
په علمونو د امي يې، تر خپل وسه ښه خبر کړه
اې هغه چې ګفتار يې، پاک وينځلی له اهوٰی* دی
اې هغه چې يې خبرې، ښه تفصيل د ما غوٰی✉ دی
کاينات لکه رنځور وه، ده چې يې نبض ونيولو
نو بربنډ يې هغه راز کړو، د ژوندون د سمبېدلو
د دې باغ د رېدي ګلو، سخا لمري چې وليدل ده
د مودو راسي ور پوري، زاړه خيري وه وينځل ده
د هغه په دين کښې ژوند دی، ژوند به نه وي چې دين نه وي
څه امکان د حيات نشته، که يې په مخکښې آئين نه وي
اې چې تخر کښې دي، قرآن دی خوبولې نور مه زانګه

☼ وکذالك جعلنٰکم امة وسطا لتکونوا شهداء علی الناس،
ژباړه: او هم دا رنګه مي تاسو يو درميانه ټولی کړئ، چې تاسو ګواهان شئ په خلګو باندي.

* وما ينطق عن الهوٰی، ژباړه: او هغه په خپل خواهش خبري نه کوي.

✉ ماضل صاحبکم وما غوٰی، ژباړه: ستا رفيق (رسول) نه ګمراه دی او نه يې تېر خوړلی دی.

ناسته، پاڅه ځه روان شه، د عمل ميدان ته دانګه
د انسان فكر تېروځي، بت پرست او هم بت ګر دی
په تنونو په جسمونو، په جثو پسې تل سر دی
بيا رده د اذرتوب يې، ايښې ده په فكر زور
چې ي-ې څنګه زره غوښتله، كړل يې نوي خدايان جوړ
خوښ په وينو تويولو، دا خدايان د ده عجب دي
چې ياد شوي په نومونو، د ملك او د رن-ګ نسب دي
دا بتان هغه بتان دي، چې نه يې تول نه څه قيمت دی
لكه ګډ د قربانۍ پروت، د دوی پښو كښې آدميت دی
اې هغه چې په شرابو، د خليلυ د كوزې موړ يې
ستا په وينه كښې تودوالی، هغه راسي نه چې سوړ يې
د باطل په حق لباس كښې، تېرېستل د هر اولس كا
"اې له خدايه چې رڼا شي ورك د وخت له شپو دا توركړه"☼
بې له خدايه نور څه نشته، په دې توره ترې سرغوڅ كړه
وه ځلېږه چې رڼا شي، ورك د وخت له شپو دا توركړه
چې كامل✉ درباندې راغلو، هغه دين په دنيا خوركړه
وار خطا شم ستا له شرمه، ستا به حال څه وي صبا ته

---

☼ لاموجود الا هو، ژباړه: بې د الله تعالٰی ځنې بل موجود نشته.

✉ اليوم اكملت لكم دينكم و اتممت عليكم نعمتي، ژباړه: نن مي ستا دين ستا دپاره كامل كړو.

هغه فخر د نبيانو، كه در واوړوي مخ تا ته
چي قرآن د خداى كتا ب ؤ، ما په تا باندي سپارلى
هغه تا تر نورو خلكو، ولي نه دى رسولى

## د ملت د ژوند اوږدوالى د عالم د نظام

## د قوتونو په تابع كولو كښې دى

اې! چي تا وه ناليدلي، ژبه وركړه له ازله
اوس به مخه آزاد زغلي، لكه وي بې غاړې چله
د چمن له خاورې پاڅه، لكه بوټى لوړ ګړنګ شه
زړه په غيب پوري تړلى، د حاضر سره په جن-ګ شه
دا حاضر عالم چي وينې، پوهوي تا چي غيب څه وي
چي د غيب تسخير كول شي، نو شروع به ي-ې هم له ده وي
سر تر سره دنيا ټوله، و تسخير لره پيدا ده
د نظر غشي ته خانه، خال سينه د ما سيوا ده
په يو "كُنْ" ټكي يې پيدا كړو، دا تمام جهان چي ګورې
چي ته خپل د همت غشى، له سندان وباسې پورې
تا دي وي سره تر سره، غوټي غوټي او بندونه

چي له دې ځنې پيدا شي، پرانستلو کښې خوندونه
که غوټۍ يې نو خوره شه، له خپل ځانه چمن پاسه
که يو څاڅکی يې د پرخې، بره لمر کړه را تر لاسه
درېغه ستا ځنې پوره شي، دا نا دره چاره ګوره
د خپل روح په تاؤ کړه ويلي، بيا تو دې کړه وينې موره
محسوسات چي چا تسخير کړل، دې خبرې ت-ې ځان جوړ
کړو
که رښتيا راباندي واېې، له ذرې يې جهان جوړ کړو
چي سينو د فرشتو، ته ښکاري غشي ورشړلو
له هغې يې آدم مخکښې، په فتراک کښې و تړلو
د محسوس د سخرې غوټې، شو اول په پرانستلو
خپل همت يې و کتلو، په موجود تابع کولو
سمه غر په لنده وچه، د دنيا په هره برخه
ګورې نه چي عالمانو، د تعليم کړه پورته نخه
د اسبابو په عالم کښې، اې بې سوله افيم خوره
تل دنيا ته بده واېې، لوټه آ خوا کړه له لوره
پاڅه و غړوه سترګې، په نشو کښې يې غم لړلی
بد پرې هيچرې مه وايه، عالم تا ته دی تړلی
چي خور نوعي د مسلم شي، غرض دا د دې جهان دی

چې له ده دي څه کېدونکي، د هغو پر امتحان دی
وخت ي-ې توره درخطا کړه، ښخه يې خپله خواکښې وينې؟
دا ښيي درته په سترګو، چې لا شته په تا کښې وينې
سينه ژوبل کړه پر واخله، د زور کاڼي که وريږي
خپل هډونه پرې وګوره، سره اورونه که غوريږي
د دنيا دا ښايستونه يې، د مومن د سترګو تور کړل
د نيکانو برخه يې شماري، خدای هغوی د دې په لور کړل
دا جهان باچهي لار ده، پر کاروان په مخ روان دی
د مومن د سرود ياره، لکه کاڼی هم جهان دی
که په ترڅ وي غېږ ترې تاؤکړه، نه کښېوځې ته ورکښېوځه
ښه شراب شه تا بهٔ اخلي، په پياله کښې د ده پرېوځه
ستا د فکر آس سيلی دی، په تندي کښې دی بې شانه
دی په جوتو ترپو ګرځي، له آسمانه تر آسمانه
نېمګړتيا د ژوند په دې خوا، مخ په کښته کړو را خوشی
له آسمانه يې را خطا کړو، کوزه مځکې ته دا غشی
چې ته ځان په هر هنر کښې، تر دې حده پوري پاس کړې
د عالم په دې نظام کښې، قوتونه ټول تر لاس کړې
چې د خدای په دې جهان کښې، ښه تائب يې بنيادم شي
اور اوبو په خاوره باد، د آدم حکم محکم شي

څومره۔ څومره چې تنګتیا ستا، ځي او غرېږي په دنیا کښې
هومره۔ هومره به ستا کار نو، ښه جورېږي په دنیا کښې
شابه لاندي کړه بادونه، ته مرغۍ د هر یو لور شه
لکه اوښ ي-ې ځان ته جوړ، کړه مهار ونیسه پر سپور شه
مټي ونغاړه آرام شه، غرونه واړوه په بله
د ګوهر د ځل واله نن، له سیندرا واله اې ګله!
په فضا۔ فضا کښې شته دی، جهانونه۔ جهانونه
په ذره۔ ذره کښې پټ دي، د لمرونو څه شانونه
د هغو د پلوشو نه، نالیدلي کړه لیدلي
هغه پټې کړه څرګندې، چې چا نه دلي پېژندلي
هم ترې واخله ډېر تاوونه، هم په ښه د لمر ځلا کړه
له دریابه له سېلابه، هم بجلۍ د کور رڼا کړه
ګرځنده هم ولاړ ستوري، چې لارغه لا په آسمان وو
د پخوا تېرو قامونو، د سجدو دغه خدایان وو
دغه وینځې او مریان دي، ته بادار يې په دوی باندي
دی پیدا د دې دپاره، چې شي تا ته وروستو وړاندي
د لټون چاره مضبوطه، په تا بیا او په تدبیر کړه
بې له خدایه پاتې هر څه، په مړدۍ ورته تسخیر کړه
سترګې و غړوه وینه، د اشیاوو په یو۔ یو کښې

چي دا څومره څه نشي دي، د شرابو په پلو کښې
چا چي خپله برخه یوړه، د اشیاوو له حکمته
کمزورتیا شوله راپورته، باج يې یوړه له قوته
د دنیا دا صورت نه دی، بې معنا کښېږده غوږونه
دا رباب که لرغونی دی، پکښې شته نوي بږغونه
لکه تندر يې هر بږغ دی، پوهه غواړي اې هوشیاره
پوهان ځان ورته شاباز کړي، بږغ يې وباسي له تاره
چي "انظروا يې اووې تا ته، دا خو ته يې پوهولې
نو بیا ولي په دې لاره، د رندو غوندي ته زغلې
هغه څاڅکي چي د خپلي، روښانتیا په راز خبر دی
نو ښکاره په گل شبنم دی، او شراب ننه د کور* دی
که دریاب لره ورکوز شي، پکښې دی شي مرغلره
خپل جوهر يې و ځلیږي، لکه ستوري چي دي بره
چي الوځي په گلونو، مه په شان ته د صبا شه
دا گلزار د معنا سیند دی، ورغوټه کړه مرجونا شه
هغه چا چي کمندونه، په اشیا دي اچولي
دا بجلۍ او براسونه يې، زین آسونه زغلولي
د هنر مرغو ته بږغ کړئ، له الوته يې کړئ راکښته

---

* انگور.

دوی خوږه نغمه له سازه، بې شابازه کړي اوچته
د ژوند لار ده ډېر ستوخه، اې چي مخکښې د ګډ خر دی
څه ویده ـ ویده روان يې، ژوند خو جن-ګ ولا ړ پر سر دی
مله دي ټول دي رسېدلي، په تا شوې څه بلا ده
د محمل نه هغو وړلي، د معنا ښکلې ليلا ده
او ته ورك لېونی ګرځې، په صحرا کښې زړه دي ستړی
مات ښنګرې زاره چاوده، وږی تږی مانده مړی
ځار شم، علم د نومونو* د آدم پر سر دستار دی
او حکمت يې د څيزونو، د آدم نه تاؤ حصار دی

# د ملت زاړه روايتونه ياد ساتل

## په ملت کښې د خودۍ احساس ويښ او مکمل کوي

تا يو داسي ماشوم وليد، اې آشنا بالغ نظره!
چي له ځان خبر نه دی، نه خبر له وره غره
نه په لرې، نزدې پوهه، نه په کوزه نه په پاس کښې

* وعلم اٰدم الاسمآء، ژباړه: الله تعالیٰ آدم ته ټول د اشياء نومونه وښيل.

په ټوپونو دې سپوږمۍ نه، چې را ونيسې په لاس كښې
نور له هرڅه ځنې مورږ دی، د موركې په خوا مست دی
يا په خوب اوتې په مست دی، يا په شور په ژړا مست دی
نا آشنا د ده غوږونه، بې خبر په بم او زېر* دی
ښه نغمه د ده دپاره، شرنګهار يې د ځنځير دی
پاك ساده د ده فكرونه، پرېشانې ورځنې لرې
پاكې پاكې يې خبرې، پاك په شان د مرغلرې
بس لټون د ده د پوهې، سرمايه ده نا اوزګار دی
ولې؟ څنګه؟ څو؟ او چرته؟ ، په هر دم د ده ګفتار دی
تل ي-ې فكر وي بل خوا ته، آ خوا دې خوا په هر لوري
دی له ځانه بې خبره، نور څېزونه ويني ګوري
كه د ده ستركې كړي پټې، څوك د شا له مخې راشي
نو بې شانه ډېر خفه شي، له خفګانه په ژړا شي
كچه فكر يې دنيا كښې، لكه هغه نوی باز دی
چې په ښكار پسې الوتی، نوی- نوی يې پرواز دی
چې په ښكار پسې يې پرېږدي، الوتل ي-ې په هر خوا شي
چې را وبلې دی ځان ته، بيا د ده منګل ته راشي
دې دپاره چې ښكاره شي، اورجنتوب يې د فكرونو

---

* غټ او نرى

له ټوټکی د غاورتوب نه، وکړي کر د اور ګلونو
ځان ته وګوري په خپله، فکر و کاندي چي څه یم
چا چوکۍ* په سینه کښېږدي، او دی و وايي چي "زه" یم
د ده یاد کاندي راوېښ دی، د خپل ځان سره آشنا کړي
دوه تارونه سره غوټه، دی پرون او د صبا کړي
په زرتار کښې ده پېیلي، تېرې ورځې او خبرې
لکه پر له پسې لړوي، په یو تار کښې مرغلرې
که هر څو هره کړۍ دی، ټولوي خوروي خاورې
"زه هغه یمه چي ومه"، دا په زړه لري که واورې
دغه "زه" په ماشوم زړه کښې، بس آغاز د ژوندانه دی
خیزي بږغ د بیدارۍ دا له، دې ساز د ژوندانه دی
یو ملت که نوی پاڅي، د ماشوم غوندي کوکۍ وي
ماشوم هغه چي په غېږ کښې، ګوډاګی د مورکۍ وي
یو کوچنی غوندي د لوبو، له خپل ځانه بې خبره
لکه خاورو کښې ککړه، ننه شوې مرغلره
په نن پوري د ده نه وي، په صبا د ده پیوند
لا ي-ې پښو کښې لکه لومې، ورځې شپې نه وي د ژوند
دی په سترګو د دنیا کښې، لکه کڅي وي روښانه

* لاسونه.

بل ته ګوري هغهویني، ولې ورك وي له خپل ځانه
دی را پراینځي سل غوټې، د خپل ځان له یوه تاره
سر د تار د خودۍ ګوری، زړه چوي د دې دپاره
که په خپله زمانه کښې، دی را مټ کاندي په کار
نو دا نوی شعور ځان کړي، تر خپل وسه ښه پایدار
پکښې نخښې جوړول کړي، جوړول کړي ورانول کړي
د خپل ژوند د قصې خونه، په شان ـ شان ودانول کړي
د خپل ژوند د ورځو شپو نه، چې بې غم شي کوم یو فرد
غاښ يې پرېوځي شي کړشپه، د ادراك منګز د مرد
سرګذشت✉ چې يې سنبال وي، هغه قام دی لوړ او ښاد
ځان هغو دی پېژندلی، چې خپل حال لري ځوك یاد
هېروونکی د خپل حال خو، په مثال د بوټې سپك شي
بیا شي خاورې ـ خاورې باد شي، د دنیا له مخه ورك شي
ستا د شتنې د مېشتنې، دارو دغه دي هوښیاره
شېرازه ترلې کیږي، تل د ورځو شپو له تاره
رابطه د ژوند د ورځو، ښه لمري☼ زموږ په تن دي
د زړو قیصو ساتنه، دی لمرو ته تار و ستن دي

---

✉ تاریخ.
☼ جامه.

تاريخ پېژنې چي څه وي؟ اې له ځانه بې خبره
څه قيصه ده څه داستان دی؟ هيڅ خبر نه يې له سره
تاريخ تا وهي په غوږو، دی خبر کړی تا له ځانه
تا کړي پوهه چي بهٔ کړې څه، کړي پيدا در کښې مېړانه
روح ته پنګه د قوت ده، کړي يې کلک لکه د ګټو
تاريخ جسم د ملت له، دې په شان د پلو او پټو
تاريخ ستا لکه د توري، په برچو* باندي وهل کړي
پس له هغه د دنيا ته، څنډول او برېښول کړي
زوړونه وړي څه ښکلی ساز دی، روح لوټي په لويه لار کښې
څه خوږې تېرې سندرې، دي ويدې د ده په تار کښې
د تاريخ په سوز کښې وينه، شته سوراور خو مړغېزن دی
څنګه ښکلی شان پرون دی، چي په غېږ کښې يې د نن دی
امتونو ته يې ده شمعه، د بخت ستوری له آسمانه
د پرون وه که د نن ده، دواړه شپې دي ترې روښانه
اې! نن سترګې د يو پوهه، ويني ورځې هغه تېرې؟
تا ته ي-ې اچوي په مخکښې، هغه تېري له تا هيرې؟
د هغه په کوزړی کښې، شته شراب د سلو کالو
په شرابو کښې مستی شته، د زړو مستو لېوالو

---

* کاڼي.

چې زموږ له ګلستانه، کوم مرغۍ وه الوتلې
دې ښکارې وه لومه اېښې، راشه بیا یې دی نیولې
د تاریخ په جوړول کښې، کلک بې شانه ګرندی شه
چې ختلي دي ساه ګاني، بیا یې راکاږه ژوندی شه
هغه تېر پرون را واخله، د خپل نن سره یې پیوند کړه
لکه باز په منګل ناست وي، روږدی✉ هسې ته دا ژوند
تل د ورځو مزې غړه، په دې کار کښې اوسه توند
ګني ګړځه په تیارو کښې، شوپرک د ورځې ړوند
ستا دا نن به هله نن شي، که پرون وه لرې یاد
له پرون کړه نن آباد، ستا صبا به شي ترې ښاد
که پر زړه دي دا ارمان وي، چې دي ژوند شي بې زواله
مه شلوه د ماغي% تار له، مستقبل✍ او هم له حاله☼
د ادراك د څپو پر له، پسې توب ځیګره ژوند دی
په حق- حق* چې کوزه سر وي، د مستانو غوره ژوند دی

%%%

✉ **عادت.** % **پرون.** ✍ **صبا.**
☼ نن.
* د کوزې آواز

# دنوعي تلوالې* له مورتوب☼ څنې دی

## او د مورتوب حفاظت ؤ احترام اصل د اسلام دی

که سرې رباب بږغيږي، ښځه ده له شاباز
کړي د ښځې آرزوګانې، دوه دونه د سري ناز
د سرو د بربندوالي، پټول د ښځې بت کړي
زره را کښونکې ښايست څنګه، د عشق تن ته کارد خت* کړي
تل تر تل د دې په غېږ کښې، د خدایΨ میني دي پاللې
ښځه څه غلی شاباز دی، دا بږغونه يې دي ختلي
چي لوېي پرې کاينات کړي، دوست د خدایΨ دی هغه ذات
واوره ښځه دوی ستايلې، ده په طيب او په صلوٰت
دا چي نن مسلمانانو، ښځې وينځې دي ګڼلې
د قرآن له حکمتونو، برخې دوی نه دي تړلې
که پوهيږې نو مورتوب خو، په دنيا کښې يو رحمت دی
چي د ده او نبي توب، سره خپلو کښې نسبت دی
د نبيρ د شفقت غوندي، مور مېرمنه د شفقت ده

---

* بقا.

☼ هن لباس لکم و انتم لباس لهن، ژباړه: دوی (ښځي) ستا لباس دي او تاسو د دوی لباس يئ.

* قميص.

مور دنيا کښې جوړوونکې، د قامونو د سيرت ده
مورنۍ مينه ښۀ پوخ کا، و تعمير زموږه وروره
او د مور د تندي کرښه، دی تقدير زموږه وروره
که دي عقل وي په سر کښې، او معنا ته څه رسيږې
په امت تکي کښې ډېرې، نکتې شته دي که پوهيږې
چي له مخه يې دنيا ده، د هغه د خولې وينا ده
چي په پښو کښې دی د مياندو، که جنت د مدعا ده
د نسونو* چي عزت وي، له دوی زيږېدنه امت وي
ګني بيا د ژوندون چاره، کچه ورانه بې صفت وي
واوره زويه له مورتوبه، تل ده تونده د ژوند منډه
اې ناپوهه له مورتوبه، د ژوند پټه شوه بربنډه
له مورتوب مي دی په سيند کښې، دا غلئ☼ څپې زورونه
دا بډاسي☼ چورلکونه، بربوکۍ دي که شورونه
هغه لور چي د باندې وي، نه پوهيږي په خبره

* اقبال ارحام لفظ استعمال کړی دی، کوم چي په قرآن شريف کښې د سورة نسآء په اولني آيت کښې دی. واتقوالله الذی تسآءلون به والارحام، يعني او د هغه الله څنې و وېرېږئ، د کوم په نامه چي تاسو يو له بله سوال کوئ، او د خپلولۍ (تعلقات د پرېښنولو) څنې و وېرېږئ. په دې سورة نساء کښې د اسلام د تمدن او معاشرت قانون واضح شوی دی، چي مسلمانان به د خپلو خپلوانو سره څه سلوک کوي، د يو بل عصمت عفت به څنګه محفوظ ساتي، سړی به د ښځو پرونو ته او ښځې به د سړو پګړيو ته څنګه درانه کتل کوي، د يو رحم يعني نس څنې نر او ښځه دواړه پيدا کيږي، څنګه چي د نر احترام کيږي، بايد چي د ښځې هم وشي، هله به محکم امت وي، ګني کار به خراب وي.

☼ مد و جزر.

وي جاهله سخا خير نه، چيته غټه سر ببره
بې ادبه بې نمکه، د مېچن او د غوجلې
نه خوله وره ساده ګوټې، د جارو او د خزلې
ننوتي کړاغې سترګې، مخ يې ګونځې په ژوندون کښې
زړه يې سترې د مورتوب په، خوږ ؤغم و شواخون کښې
که د دې له غېږې پاڅي، مسلمان چي ننګيالی وي
په ملت کښې د خدای شېر وي، مېړنی وي توريالی وي
نو زموږه ژوند محکم دی، له ناکام د داسي لوښو
نړی[✉] روڼې مي سحر دی، له ماښام د داسي لووښو
او بيا هغه نازك تته، کور ساتلي خرشه پرشه
د زړه غله ګوډی د لوبو، خواره شوې غېږه تشه
د دې فکر ورته برېښي، د مغرب[*] رڼا په ده ده
په ښکاره خو ښځه ښکاري، خو دننه ښځه نه ده
ناز، نخرې يې شي له سترګو، سېلاب ووت د بې سولې
د ملت که قاموليٰ وي، تولي يې يورې يخې پولې
کلکي سترګې فتنه ګرې، بس د دې دا آزادي ده
د حيا شرم نه لرې، بس د دې دا آزادي ده

---

✉ جهان دنيا.
* د فيرنـګي ملك.

د دې علم په سر پېتی، د مورتوب وه نه زغملو
په ماښام د خواري يو هم، ستوري ونه ځلېدلو
داسي ګل دي زرغون نه شي، په امان شې زموږ باغه
د ملت لمن مينځلې، ښه ده پاکه له دې داغه
"لا ا لٰہٰ" ويونکي ډېر دي، په شماره لکه د ستورو
پټې سترګې لا ساتلې، زمانې په تېرو تورو
د نشتوالي له تېرو لا، راوتلې بهر نه دي
په دې ښار د څنګه څو☼ لا، را دننه په ور نه دي
لا زموږ په توررمو کښې، دي پرتې نه دي وتلي
هغه ډېرې رڼاګانې، چي لا موږ ښه دي ليدلي
کوم شبنم چي لا د ګلو، بسترې ليدلي نه دي
د صبا نوکو چي کومي، غوټې لا څېرلي نه دي
د امکان دا ريدي زار به، يې زرغونه کړي ستا د وړاندې
وبه يې ويني چي سمسور شي، باغ زموږه درنې مياندې
که رېشم پښم که نغدې، که سره سپين او که دستار دی
سرمايه ګورې دا نه ده، که دا هر څه وي قام خوار دی
اې هوشياره! تېروه نه خورې، د قام پنګه ښه اولاد دی
چي کلك توند او مېړنی دی، چي په روغه څټه ښاد دی

---

☼ **كيف و كم.**

د دولت د اخوت هم، حفاظت كيږي له مياندو
د قرآن او د ملت هم، حفاظت كيږي له مياندو

%%%

# د مسلمانانو ښځو د پاره سيدة النسآء فاطمة الزهرا(رض) كامله نمونه ده

كه مريمه(ع) ابې مور ته، په يوه عيسٰیυ خوږه ده
نو په دريو نسبتونو، فاطمه زهرٰی خوږه ده
دا اول د ستركو توره، د هغه ده چي امين دی
اولين هم آخرين دی، هم رحمت د عالمين دی
دا هغه چي مړه دنيا يې، را ژوندۍ په نوې ساه كړه
زمانه د نوي دود يې، لكه زېرى را پيدا كړه
چي تاجدار د "هل اتٰی*" دی، د هغه د كور رڼا ده

* په سورة دهر كښې د اووم نه تر لسم پوري آياتو نه د يوې واقعې سره تعلق لري، مفسرين ليكي: "چي د حضرت عليτ زوی ناروغ ؤ، د دواړو جهانو سردار وركړه راغلو، ارشاد يې وكړو، چي ښځه خاوند درې درې روژې د خدای په نامه وه منئ، ګوندي هلك خدای روغ كړي، دوی منته وكړه، هلك جوړ شو، روژې دواړو شروع كړې، كور كښې څه نه ؤ، شبر د خدای روژه په خوله لاړو، څه محنت مشقت يې وكړو، سېر نيم اوربشې يې راوړې، بي بي فاطمې روژه په خوله زر زر بغرئ، بټی، مېچن، اوړه او ماښام قابو يې تبخی كښېښو، ډوډۍ پخه شوه، بانګ ته لږ ساعت پاته دی، په كوڅه كښې ږغ شو چي: "خيرات راوړئ، د پيغمبر كورنۍ! مسكينن يم، د لوږي مړ شوم، حضرت علي ټوله ډوډۍ وركړه، دواړو روژه په اوبو ماته كړه، پېشمنی يې هم په اوبو وكړو، صبا بيا شبر د خدای روژه په خوله مشقت يې وكړو، بي بي اوربشې اوړه كړې، ډوډۍ تياره شوه، بنګ ته لږ وخت ؤ، د كوڅې نه ږغ راغلو چي: "خيرات راوړئ، د پيغمبر كورنۍ! يتيم يم وږی يم، حضرت علي بيا ډوډۍ وركړه، او ښځې خاوند تشې اوبه

د خدای شېر مشکل کشا دی، د هغه د کور رڼا ده
مرتضیٰ هغه باچا ؤ، چې جونګړه کښې يې شان ؤ
يوه توره يوه زغره، ايله دغه يې سامان ؤ
دې مرکز د عشق پرکار ته، دا د هغه هوشيار مور ده
قافله د عشق يې سيخه، کړه د هغه سالار مور ده
د حرم د خونې شمعه، پلوشو يې وکړې منډې
چې ساتنه يې مقصد وه، د خپل لوی نېکه د غونډې
اراده يې د ورکولو، د کينې او شور او شر کړه
د نيکه لمسي له نيته، تخت او تاج ته لته ورکړه
هغه مشر د مينو، سر د غونډې د نيکانو
په دنيا کښې يو قوت ؤ، د احرارو د پاکانو
دا سوزونه له حسين دي، د ژوندون سوي نارو کښې
سوي زده کړي له حسين دي، حريت په شنو زمرو کښې
سيرتونه د زامنو جوړول، کا خوا د مياندو

و څښلې، په درېيمه روژه بيا له دروازې ړغ راغلو چې: "خيرات راوړئ د پيغمبر کورنۍ! له قيد نه اوس را خلاص شوم، څوك مي نشته، وږی يم، سخي بيا ډوډۍ ورکړې، درېيمه روژه يې هم په اوبو ماته کړه، د لوی او غيرتمن خدای د غيرت قلزم جوش وکړو، وحي په تلوار راغلو، وې چې: "يوفون باالنذر و يخافون يوماً كان شره مستطيرًا، و يطعمون الطعام علٰى حبه مسكينا و يتيما و اسيرا، انما نطعمكم لوجه الله لانريد منكم جزاء ولا شكورًا،

ژباړه: جنت مي هغه چا ته ښايسته کړی دی، چې خپلي منتې پوره کوي، او له هغه ورځې وېرېږي، د کومې مصيبت چې به هر خوا خور وي، او مسکينانو ته، يتيمانو ته او قيديانو ته د هغو د مينې له کبله ډوډۍ ورکوي، او وايي: "چې موږ خو د خدای په رضا په تاسو خورو، نه در څخه بدل غواړو او نه شکرانه.

د صفا صدق جوهر هم، برکت دی له آدميانو
د تسليم رضا د کښتي، فاطمه حاصل منه ده
د اسلام د مياندو ورانديِ، دا کامله نمونه ده
زره يې و سوځېدو داسي، د محتاج د غم له اوره
په يهود يې ځادر خرڅ کړو، شوه په خپله دا سر توره
که مسلم که نا مسلم ؤ، په سلام د يې د ور تل
د ځښتن هره خبره يې، اخسته په سترګو سر تل
هغه پاکه صبرناکه، په رضا د خدایΨ خوشحاله
د مېچنو انهونکي، قرآن خوانه بې مثاله
په ژړا وه سر او سر يې له، سر ويکدي* مور وه لړې
د لمانځه په دونکاچه به، يې تل نوستلې مرغلره
جبرائيل به د دې اوښکي، له دې مځکې ټولولې
لکه پرخه به يې پورته، پر عرش باندي واچولې
که ځنځير د شريعت مي، پښو نه نه وای پرېوتلای
چي فرمان د مصطفٰی دی، ما هغه ته نه کتلای
نو مدام به چور ليدنې، ما له پاک ځلې د دې کړې
هم يې تل په پاکو خاورو، د اخلاصه ما سجدې کړې

%%%

* بالښت.

# داسلام سترمنوته

اې چې ستاسو پاك پړونې، شه زموږ د ناموس رنګه
اې چې ستاسي رڼاګانې، دي زموږ د فانوس پنګه
اې په خټه پيدا پاكو، وجودونه مو رحمت دی
هم پاك دين لره قوت دی، هم بنياد مو د ملت دی
چې ماشوم زموږه ستاسي، په شودو كړي خوله كنګاله
نو په مم د لا ا لٰه يې، اول تاسو كړئ خوشحاله
ستاسي ډېره تېره مينه، پس له هغه سره خوا شي
چې زموږه دود او فكر، هم كول ويل وه تراشي
چې وريځ ستاسي ساتلې، زموږ تندر ؤ په خوا كښې
هغه وه برېښېد ګوزار شو، هم په غرونو هم صحرا كښې
اې رښتيا امانت ګرو! ، لوی نعمت د خدای آئين دی
ستاسي هره- هره ساه كښې، تاؤ د پاك الله د دين دی
د دې دور خوله خوږه ده، تېرايستونكې د چلول دی
كه كاروان يې روان وينې، د دين لار وهي غټ غل دی
ړوند او كوڼ له خدايه لرې، دغه حال يې د درك دی
هر نامرد يې كلك ترلې، په خپل پير او په چور لك دی
دا څښتن د كلكو سترګو، ډېر بې باكا ؤ بې پروا دی

د ښو په غشو ویشتی، ده زړګوټی د هر چا دی
هغه ده چي دی ترلی، په آزادو حساب ځان کړي
هغه ده چي دی وژلې، د ژوندو په ځان ګومان کړي
اوبه ستاسي ونه غواړي، جمعیت ستاسي په سر دی
سرمایه ساتنه غواړي، دا ملت ستاسي په سر دی
چي سودا د سود او زیان مي، آ خوا نه کړي له خپل سره
بې له پلار نیکه د لارې، لاهو نه شئ بې ګودره
د بد دور له خپرې، هم بچي ساتئ هم ځان خپل
ټینګ را وه نیسئ په غېږ کښې، د زړه غوټې فرزندان خپل

زېړې خولې مرغۍ بچوړي، شوي بې نه دي لا وزرې
د چمن له څانګې ځالي، پرېوتلي څومره لرې
د خدایي جذبو مېرمنو! ، راشئ بیا ونغاړۍ مټې
سمه لار ده د زهرا ژوند، ګوري سترګې نه کړئ پټې
کړئ راستون تېرشوی وار بیا، په چمن کښې کړئ بهار بیا
چي مي وکړي هره څانګه، د حسین غوندي ښه بار بیا

%%%

# د مثنوي خلاصه د سورۀ اخلاص په تفسير كښې

# ((قل هو الله احد))

يوه شپه مي خوب كښې وليد، ؤ حضرت صديق τ بې شكه
ما يې د لار له خاورو يوړه، د سرو ګلو ځولۍ ډكه
دا هغه دی چې ستايلی، پيغمبر امن الناس ☒ دی
دی زموږ لومړی كليم دی، چې په طور ختلی پاس دی
دا ملت لكه پټی دی، او د ده همت ؤ ابر
دی دويم ؤ د اسلام ؤ، هم د غار ؤ بدر قبر
ما وې اې! چې ستا د عشق، لوړ مقام د بر نه بر دی
سره عشقه ستا له عشقه، چې د عشق د ديوان سر دی
ستا په لاسو ابينی شوې، ده رده زموږ د ژوند
نن ولاړ يو په سور اور كښې، راته وښيه څه بند
وې چې څو به پكښې پروت يې، خواهشونه جېلخانه ده
د اخلاص سورت نه واخله، عزت پټه خزانه ده
هغه دا چې سينې ډېرې، ساه يوه پكښې غرېږي
په رازونو د توحيد كښې، دی يو راز كه څوك پوهېږي

☒ امن الناس علی في صحبته وماله ابوبكر، (حديث)
ژباړه: ابوبكر په ما ډېر احسان كوونكی دی، په خپل مجلس او خپل مال كښې.

د هغه په رن-ګ کښې رن-ګ شه، د هغه د رن-ګ مثال شه
د هغه په دې جهان کښې، لکه سيورى د جمال شه
هغه چا چې مسلمان کړې، ته ي-ې په دې نامه ستايلى
له دوه والي نه يې په لوري، د يووالي يې راکښلى
کله واي-ې چې زه ترک يم، کله وايې چې افغان يم
څه وې؟ څه شوې؟ دا ژړا ده، وايې نه چې مسلمان يم
له نامونو خلاص کړه نو ملي، له نومونو ځنې تېر شه
اې! د خم سره کړه جوړه، له جامونو ځنې تېر شه
اې چې نوم داسي ذليل کړې، اې د نوم تر لاسه خواره
ئې هغه مېوه د ونې، چې کچه شي را ګوزاره
له يووالي سره روغ شه، د دوه والي پرېږده نخښې
چې دا خپل غوره يووالى، چرې نه کړې برخې- برخې
اې منونکيه! د يو که، دا ته ته يې ځان وه مومه
د دوه والي دا سبق به، آخر ته لولې تر کومه
خطا مه شې دواړه يو کړه، په خوله نوري په زړه نوري
دا خو ور د خپلې خوني، تا خپل ځان ته کړلو پوري
دا خو يکې يو ملت ؤ، تا ترې سل توکې پيدا کړل
په خپل کوټ دي شبخون وکړو، په ځان شندې دي دا ستا کړل
يو شه و ښيه يووالى، د توحيد مينه خپل سود کړه

هغه پټ چي دی له سترګو، له عمله يې را موجود کړه
د ايمان خوندونه ډېر شي، د هغو چي عمل کاندي
دي هغه مړه ايمانونه، چي عمل ته نه دي وړاندي

## الله الصمد

که په خدای بې نيازه پوري، تا دا خپل زړه وتړلی
له سرحد د سببونو، يې په کتو بهر وتلی
نو بنده د خدای بيا کله، بنده توب لا د حيلو کړي
ژوند رهټ نه دی چي چورلي، نه پرواه د ډول چکلو کړي
که ربښتونی مسلمان يې، بې پرواه له هر يو غير شه
اوسېدونکو د دنيا ته، سر تر سره پوري خير شه
د مړو سړو په مخکښې، هيڅرې نصيب مه ژاړه
تويوه مه چرې اوښکي، مه لاس نېسه او مه غواړه
د علي قوت پيدا کړه، ته په روټه د اوربشو
خيبر واخله غشی ښخ کړه، د مرحب په سينه تشو
د ښکاره د څښتن ولي، د احسان څوکونه اخلې
ته په دوارو سترګو ولي، د وه نا دوکونه اخلې
له نامردو له شومانو، ته خپل رزق ولي غواړې

ته یوسف يې نه سلیږې، په ارزانه بیعه لاړې
که هر څو لکه مېږی شې، کم طاقته يې وزره
حاجت مه وړه سلیمان ته، نه ښاییږي د زړه سره
لاره ده يې شانه ګرانه، کډه سپکه کړه پر مه مره
د الله په دې جهان کښې، آزاد ژوه آزاد وه مره
شپه هم ورځ ته وظیفه کړه، د اقلل من الدنیا* ته
غوږه ته کړه "تعش حرا"، مدام اوسه مړه خوا ته
په غوښتلو به شې خاورې، څو توانیږې ځان کیمیا کړه
د ګټلو د خوړلو، د خورولو ژوند پیدا کړه
بوعلي په ګور يې نور شه، که يې خبر يې له مقامه
څکه وکړه دا یو ګوټ دی، د هغه صاحب له جامه
"څه که تخت د کیکاؤس شي، بې پروا شه لته ورکړه
چي خبره د ناموس شي، ځار قربان تر مال و سر کړه
که دي تشه پیمانه وي، بې نیازي دي وي وزرې
نو که بنده میخانه وي، هم په خپله يې ور شي لرې
د اسلام ځلنده ستوری، چي د کوم نامه هارون ده
چي مېړانه يې لیدلې، د نقضور☼ سترګو پرون ده

* اقل من الدنیا تعش حرا، ( د حضرت عمر فاروق وینا ده،
ژباړه: دنیا کمه کړه نو ژوند په آزادۍ سره کوه.

☼ نقضور د روم باچا ؤ هارون رشید څو څو واره شکست ورکړی ؤ.

مخ يې كړو امام مالك ته، وې چې "اې د علم لمره!
د اولس تندي اخستې، رڼاګانې ستا له وره
په چمن كښې د حديثو، اې بلبله نغمه ګره!
چې څه زده كړه له تا وكړم، ده په زړه مې دا خبره
لعل به څو وي په يمن كښې، اوس را ووځه له خپل درنګه
ته رڼا د خلافت شه، د بغداد ښايست كړه رنګه
د عراق د رڼو ورځو، رڼاګانې تل خورې دي
زړونه وړونكي ښايستونه، څنګه ښې۔ ښې ننداره دي
د حيات اوبه ترې څاڅي، شه نزدې د عراق كور ته
هم يې خاورې دي ملهمې، د عيسٰى غوندي پرهر ته"
مالك اووې: "زما نشته، بله هيڅ سودا په سر كښې
زه غلام د مصطفٰیρ يم، خوښ يم تل د هغه ور كښې
ډېري-ې خوښ يم په فتراك كښې، لوي-ې نشته له دې نوره
هيچرې به زه لاړ نه شم، له درشل د پاكه كوره
د يثرب د پاكو خاورو، ښكلولو كښې مې ژوند دی
د عراق له رڼا ورځو، ډېر زما په شپو كښې خوند دی
عشق په چغه راته وايي، چې مې وينښ اوسه فرمان ته
كه شاهان دي مريان كيږي، هم نزدې يې مه كړه ځان ته
او ته دا خوبونه وينې، چې لا ته زما بادار شې

زه آزاد و ستا بنده شم، ته زما د واك اختيار شې
هم تعليم کوې زما نه، هم کوښې ته استاد غوارې
د ملت خادم به څنګه، ستا چاکر شي خطا لارې
که د دين د علم برخه، ستا مقصد وي دلته راشه
د درس ګړده کښې زما ته، زنګون و وهه لګيا شه"
د بې نيازو بې نيازۍ کښې، پټ پراته وي ډېر نازونه
ډېر نازونه د نيازبينو، لري ډېر۔ ډېر اندازونه
بې نيازي خو د خدای رن-ګ دی، د خپل تن پرې پټول دي
بې له خدايه د بل رن-ګ بس، له لمرو ځنې وينځل دي
د بل علم خو دي زده کړو، کړه خوندي د دغه پنګه
په خپل مخ دي ومښلو، روڼ دي کړو له دغه رنګه
مرتبه او عزت څنګه، له پردي عادت نه غوارې
دا ته ته يې که څوك بل دی، دا په کومه کږه لارې
په نسيم يې شوه ستا خاوره، چپ سره خبر در وشه
له ګلونو کشمالو هم، ستا لمن پاتې شوه تشه
خپل پټی له خپله لاسه، ورانوې ته مسلمانه!
سوال ترې مه کړه دا وريخ ده، تشه توره له بارانه
دی ستا عقل يې ترلی، په خپل فکر کار د بل دی
په مرۍ کښې دي ساګانې، ځي راځي خو تار د بل دی

ويناګانې ستا په خوله کښې، تا غوښتلې دي د بل نه
آرزوګانې ستا په زړه کښې، تا غوښتلې دي د بل نه
ګوګوشتکو ته بړغونه، تا غوښتلي له بل چا دي
ستا د سرو په تنونو، قباګانې غوښتي تا دي
شراب غواړې په کوځو کښې، جام دي نورو ته نيولی
لا دا بل شرم د ګوره، جام دي هم قرض غوښتلی
هغه سترګې چې په شان کښې، مازاغ البصر* دنيا شي
که د خپل امت په مخکښې، پستنه دنيا ته راشي
هغه شمعه ښه پوهيږي، چې مې کوم يو پروانه دی
هغه ي-ې پيژني له ورايه، چې دا خپل دا بيګانه دي
که په "لست مني☼" مورِ ته، پيغمبر زمورِ ګويا شي
بيا به مځکه هم ونه چوي، چې پکښې سترګې فنا شي
څو به ي-ې لکه د ستورو، د ژوندون په دې سفر کښې
ستا هستي به وي څو ورکه، په رڼا د سپين سحر کښې
تېر د تور صباح ده وخوره، اې کاروانه اې روانه
کډې تا و ليږدولې، له لمنې د آسمانه
ځان دي نه دی پيژندلی، ته خو وګوره آفتاب يې

* ما زاغ البصر وما طغٰی، ژباړه: سترګي د ده بل خوا ته واوړېدې نه.
☼ ته زما د قام ځني نه يې.

رڼا مه غواړه له ستورو، د رڼا خو ته درياب يې
تا د خپل زړګي دپاسه، دا د غيرو نخښنه ځاى کړه
توري خاورې دي پرسرکړې، اوکېميا دي لاړه باى کړه
دي د نورو برېښېدنې، ته به څو ورته ځلېږې
کړه پردى نشې ترې کوزې، سر دي سپک کړه که پوهېږې
د محفل ډيوه کښې څه دي، نور له دې ته مه تاوېږه
که دي زړه وي په سينه کښې، له خپل اوره وسوځېږه
ته د سترګو په پړدو کښې، نظر کښېنه مه تر ووځه
په خپل ځاى کښې مېشته اوسه، هم په هره خوا الوځه
په دنيا کښې مدام اوسه، بړبوکۍ غوندي هوښياره
خپلې خونې ته مي پرېږده، د پردو دپاره لاره
يو سړى که سړى کيږي، نو د ځان په پېژندل شي
قام هغه بللى بويه، وي د ځان نه چي بل شي
له پيغام د مصطفٰیρ ته، ځان په زور او زېر آګاه کړه
نور فارغ شه له هر چا ته، دا يو ځان د يو الله کړه

%%%

## لم يلد ولم يولد

وې چې ستا د قام مقام دی، ډېر له رن-ګ او وينې پورته
سل د سرو سپينو رنګونو، شه لوګې يې يوه تور ته
د اودس د اوبو څاڅکي، د قمبرؓ کړه يوې خوا ته
د قيصر له وينې زيات دی، که يې وه نيسې بها ته
مور که پلار که تربولي ده، ته آزاد له هر يو دام شه
يومخيز لکه سلمانؓ شه، زېږولی د اسلام شه*
دې نکتې ته زما ګوره، که نظر دي وي ککو کښې
شات☼ په څه شان له پراته دي، د يو وړي کورکو کښې
پکښې ګوره يو بخری، د رېدي د زړه سور اور دی
له نرګسه يو پيسانی، د هغه د سترګو تور دی
نه په دې سوره کښې ږغ شته، چې زه نوغي د شهلا يم
نه له هغه کوره چيغه، چې ګلاب نوغي اعلا يم
دی ملت د ګبين وړی، عجب شان د ابراهيمؑ دی
په دې وړي کښې دا شات✡، پوخ ايمان د ابراهيمؑ دی
په ملت کښې که دي کړله، د نسب نامه راګډه
اخوت لکه قلعا وه، تا رده کړه ورته ډډه
په دې مځکه کښې زموږه، چرې نه لګي ستا جرې

---

* سلمان فارسي يو اصحابي ؤ، چا تر د هغه د شجرې تپوس وکړو، چې ته د کوم نسب يې؟ هغوی ځواب ورکړو: "چې سلمان ابن الاسلام، يعني سلمان د اسلام زوی.

☼ شهد.

✡ شهد.

لا دي فکر نامسلم دی، څه چي هر لوري ته رغړېږي
د عشق شمعه بلوونکی، ښه مېړه ابن مسعودτ
د عشق اور وسوځولې، د ده ساه او هم وجود
مرګ د ورور پر بل اوربل* کړو، نغری د ده سینه شوه
له ډېر تاوه يې ويلي ويلي، د زړګوټي آئينه شوه
نور يې زغم کولی نه شو، په ژړا شولو خوړ ورور ته
لکه مياندي وي په چيغو، روړې ده کړې هسي پورته
"چي ارمان۔ ارمان چي لاړې، د نيازونو سبق خوانه
د نيازونو مدرسې ته، تل زما سره روانه
د چناري وني وروره، زه وم ستا سره ملګری
د نبيρ د عشق په لاره، وې زما سره ملګری
های ارمان! چي ته جدا شوې، له دربار د نبوته
زما سترګې دي روښانه، له ديدار د نبوته"
نه د روم سره پيوند يو، نه عرب سره پيوند يو
دا زموږ ترون څه بل دی، نه نسب سره پيوند يو
د نبيρ د عشق په خم کښې، زموږ زړونه دي لړلي
موږ له دغه يوه کبله، په يو بل پوري تړلي
موږه ټول سره تړلي، د هغه د مينې تار ښه

---

* دوهم.

د هغه د دې شرابو، لرو سترګو كښې خما ښه
چې په وينه كښې يې زموږه، دي مستۍ وكړله منډه
لكه زر له اوره ووځي، شوه مي نوې زَړه غونډه
جمعيت او يو كېدو ته، سرمايه د نبيρ عشق
په رګونو د ملت كښې، وينه ده د نبيρ عشق
د عشق كور وي تل په روح كښې، تن دى خاوره نسب زنې
تار د عشق غښتلى پوخ دى، د نسب تار دى اومړى
كه د عشق په لاره درومې، تېر شه ـ تېر شه له نسبه
هم له روم او له ايرانه، تېر شه ـ تېر شه له عربه
د نبيρ غوندي امت هم، "نور د حق" په رڼا موړ دى
كه مڼې وجود زموږه، د هغه له وجود جوړ دى
"نور د خداى" ته څوك نه وايي، زېږېدلى وسېدلى
او د خداى د خلعت تار شي، نه رېشلى نه وودلى
د چا پښو ته چې ؤ بياسته، ملك ؤ رن-ګ ؤ آب او جد دى
دا بې سوله بې خبر په، لم يلد ولم يولد دى

%%%

ولم يكن له كفوًا احد

چې دنیا ته کتل نه کړي، زړه يې-ې په خدای پوري تړلی
مسلمان د دې خوبیو، څه وي؟ تا دی پېژندلی؟
راشه واوره ریدي ګل دی، چې ولاړ د غره پر سر دی
له ځولۍ نه د ګل چینو، ډېر دی لرې بې خبر دی
سرې لمبې ختلي وینې؟ د ده اور په غرهر دی
دا قوت خو له ساګانو، موندی ده د لوی سحر دی
دې آسمان دی کلك نیولی، په ځان پوري که پوهېږې
وروستنی ستوری يې شماري، غورزوي يې نه له غيږې
اول ده ته په پښو پرېوځي، پلوشې د لمر چې پاڅي
د خوب دوړي يې له سترګو، شبنم وينځي چې را څاڅي
لم یکن پوري بنه کلك شه، چې بیل نه شې له دې تاره
ستا مخي به پکښې نه وي، که قامونه شي بې شماره[✡]
هغه ذات چې بې مثال دی، یکي یو دی لا شریك
د بنده سره يې نه ښايي، هم دي نه وي ستا شریك
د مومن مقام اوچت دی، د بل هر یو بر نه بر دی
نه زغمي د ده غیرت بل، که د سر دپاسه سر دی

✡ په اصل خپل کښې د دې مصرعې د اقوام لفظ د میم لاند اضافت دا مصرع داسي جوړوي:
(کوم قامونه چې ښکاره دي، چې هغوی کښې شې نامداره)
خو زه يې داسي خوښوم لکه چې مي وه کښل، ځکه چې مسلمان ربنتونی قام شي، نو بیا د ده مخی نشته، دی د ټولو نورو ملتونو ځنې ځان ته اوچت ملت دی. سمندر

د لا تحزنوا* کندر يې، اغوستلی پکښې ژوند کړي
تاج د انتم الاعلون، يې-ې پر سربادي څنګه خوند کړي
بار د دوارو جهانونو، د مومن اوږو کړو پورته
بحروبر د ده په غېږ کښې، دی لوی شوی ګوره يې-ې زورته
غوږ يې تندر ته تل ایښی، په باران او په بړلۍ کښې
چي کرس وکړي را خطا شي، سم يې واخلي په ځولۍ کښې
د باطل په مخکښې توره، د حق ډال تل يې سائل کړي
امر و نهي يې خير او شر نه، لکه تله ده تلل کړي
د سکروټې يوه غوټه يې، سرې لمبې لري سوونه
ژوند کمال ورځنې مومي، دی جوهر يې بې کمونه
په فضا د دې دنيا کښې، که شته ډېره هله ګله
بې د ده له يو تکبيره، نغمه نه شوه چيغه بله
ډېر يې عدل اوبخښنه، هم احسان د ده عظيم وي
که له قهره✡ سور انګار وي، هم مزاج د ده کريم وي

---

* **ولا تهنوا ولا تحزنوا و انتم الاعلون .... الخ. (قرآن)**
**ژباړه: مه غم کوئ مه ويره کوئ هم تاسو به ډېر اوچت يئ.**

✡ **پخوا جنګونه د توري ډال او په ګتکو وو، په يو جنـګ کښې حضرت علی کرم الله وجهه د يو کافر پهلوان سره جنګېدو، نه هغه پربوتو نه دی، د حضرت علي کرم الله وجهه يو ځل وار ساز شو کافر يې اوچت کړو په مځکه يې کښېښنو، په سينه ورته کښېنوست توره يې ورته په مرئ ولګوله چي يې مردار کړي، د کافر چي د خپل مرګ يقين وشو، نور وس يې نه ؤ، د حضرت علي کرم په مخ يې د خولې لاړي ور تو کړې، حضرت علي تر ناڅاپه پورته شو، درې قدمه په شا شو، يوه پښه مخکښې بله وروستو، ګس لاس کښې ډال ښي لاس کښې بمبل توره، د کافر مقابلې ته تيار ودرېد، کافر پروت ؤ، ( په پل مخ) پروت پاتې شو، حيران ګوته په خوله کښې ورته وه يې وې، چي: دا څه؟ حضرت علي**

په بزمونو کښې يې ښه ساز و، هر چاته زړونه ښه کړي
په رزمونو کښې يې تاوونه، غرونه اوسپنې اوبه کړي
د بلبلو سره يو ځای، په چمن کښې دی چغار کا
په بېديا او په ځنګل کښې، کټه باز الوځي ښکار کا
دمه نه مومي هيچرې، د ده زړه د آسمان لاندي
ختّه يې هله شي قراره، چي شي دا په فلك باندي
پر ټونګی د ده مارغه کړي، ستوري دی ورته خځوځي
له دې زوړ آسمانه آ خوا، چرته ډېر لري الوځي
تا ځانګونه دي را نغښتي، نه يې آسمان ته الوتلی
لکه وي چينجی د ختو، خاورو لاندي پروت يې غلی
له قرآنه چي شوې لرې، خواری شوې درباندي ډېرې
سر وهې له زمانې تل، له دوران ځنې يې انګيرې
لکه پرخه له آسمانه، يې پر مځکه را ګوزاره
دا ژوندی کتاب په تخر کښې، او بيا هم نه مومي لاره
په دې خاورو په څو رغړې، پاڅه دا وطن دي پرېږده
شابه پورته کړه واخله، د آسمان پر سر يې کښېږده

---

وې: "چي ما خو ته د خدای دپاره وژلې، چي تا راته په مخ لاړې تو کړې، نو خپله ذاتي کينه مي پيدا شوه، د ځان دپاره وژل مي خوښ نه کړل، ته مي پرېښوې، اوس د خدای د دين په مرسته بيا درته تيار ولاړ يم، دا ګز دا ميدان، کافر اووې: "چي ښه اسلام دا دی! وايي، چي په جنـګ کښې يې د توحيد کليمه اووې او غزا ته ووتو، غالباً اقبال صاحب دې مشهورې خبري ته اشاره کړې ده. سمندر

%%%

# مصنف په حضور کښې د رحمة اللعالمين ρ

اې چې ستا ظهور زلمی کړو، ژوند اومتوب ۀ لا تر اوسه
ستا جلوه ورته تعبير شوه، ژوند يو خوب ۀ لا تر اوسه
مځکې ستا له لوړ درباره، دا بې شانه عزت و موند
چې ستا بام ې-ې ښکلولو، آسمان ځای و اوچت و موند
ټول جهان کښې هر مخه، ده روښانه ستا له مخه
ترک، تاجک، عرب، هندي څه، ستا په نور کړي د هر څوک سخه❖
ستا له مخه جوړه رنګه، د دې واړه کاينات ده
ستا له فقر ځنې پنګه، د دې واړه کاينات ده
په دې غونډه د دنيا کښې، تا د ژوند ډيوه کړه بله
بندګانو ته دي څنګه، سروري ور وښيله
چې ته نه وې په جهان کښې، شرمنده او لکه ورک وو
د اومو خاورو کندوان ۀ، صورتونه داسي سپک وو
خاورو هم اورونه وکړل، دم قدم د هر څه سم کړل
تا د تورو خاورو څلي، په دنيا کښې بنيادم کړل
ذرې وختې را تاوې، له سپوږمۍ او هم له لمر شوې

❖ لوی.

يعني ستا له برکته، دوی له خپل زوره خبر شوې
چي نظر مي په تا پرېوت، د هر چا د سترګو توره
ډېر بې شانه راته خوږ شوې، هم له پلاره هم له موره
عشق را باندي اور بل کړی، تن تنور په غوره هار دی
خدایΨ ده سره ښه وکړه، روح مي هم سره انګار دی
يو فرياد زما سامان دی، يم شپېلۍ سوری ځيګر کښې
دا يوه ډيوه بلېږي، په دې کور لکه کنډر کښې
زړه پټ۔ پټ کوي دردونه، داسي غم نه ويل ګرانه
د ښيښې په کوزه کې کښې، د شراب پټول ګرانه
د نبيρ له راز نه څومره، مسلمان دی لرې وتی
دا کعبه شوله بيا ډکه، هر يو بت ور ننوتی
د چا لات د چا منات دی، چا عزا د چا هبل دی
هر يو تخر ته چي وګورم، بت پټ کړی هر يو غل دی
شيخ بامبړ ته کافر واي، خو په خپله ځنې زيات دی
د ده سر په سترګو وينم، چي دننه سومنات دی
رخت د ژوند يې د عرب نه، کړو راپورته خوند د ده شو
د عجم شراب خانې ته، چي را ورسېد ويده شو
د عجم اوبه د واورو، مړه د ده لاس او هم پښې شوې
له يخنۍ د بړلو اوښکو، سرې لا د ده نښې شوې

د کافر غوندي د ګېږي، له اجله کوي ویره
په سینه سیلۍ کښې نشته، د ژوندي زړه مرغلره
طبیبانو ته مي یوورو، خو ژوندی نه شو دا مړی
اې د دوو کونو سرداره!ρ، اوس مي تاته دی راوړی
ما دې مړي ته اوبهٔ دي، د حیوان ور څښولي
ما رازونه اسرارونه، د قرآن ورته ویلي
ورته تېر شومه د نجد، د یارانو له داستانه
هم خوږې وږمې مي راوړې، څو د نجد له بوستانه
د وینا په بله شمعه، دا مجلس کړو ما روښانه
د ژوندون په رمز پوهه، ما دا قام کړو تر خپل توانه
قام کړو تور راپوري واېي، چي افسون د فیرنګي دی
دا د ده غوغا او شور خو، له قانون✡ د فیرنګي دی
اې چي تا زما دپاره، د سلما دغه ساز غور کړو
څه نصیب د بصیري*، ؤ خپل څادر دي ور پر سر کړو
ذوق د روغې سمې لاړې، ورکړه ته دې خطاکار ته
بې خبر له خپل متاعه، ورکړه رو دې ګناهګار ته
که زما وي په سینه کښې، زړه هینداره بې جوهره

✡ ساز.

* بصیري د قصیده برده مصنف چي په خوب کښې یې نبی کریمρ ته قصیده واوروله، او هغوی ورته په بدل کښې خپل څادر ورکړو، څه نصیب ؤ، د بصیري، څوك وايي چي بصیري چي دا خوشحالي پ ویښه لیدلې ده، خدای به خبر وي.

که په تورو کښې زما وي، بې قرآنه څه خبره
نو اې ته خبر زموږه، په حالونو د سينو يې
پلوشه د سحرونو، د وختونو زمانو يې
نو زما د داسي فکر، د ناموس څېرې لمن کړه
که زما وجود ازغی وي، نو جارو ي-ې له دې چمن کړه
د ژوندون قميص پرې تن-ګ کړه، که په تن کښې مي ضرر شته
د وګړي نه يې په څنګ کړه، په ده کښې داسي شر شته
که پټې مي شاړ بنجر وي، مه يې شين سمسوروه ته
د سپرلي ډکي وريځې، باندي مه را ورووه ته
په انګور کښې مي نم وچ کړه، دا شراب له مرګه تېر کړه
کافوري شراب زما ته، په ترخو زهرو ګنډېر کړه
ما شړلی، شرمېدلی، د قيامت په لوی ميدان کړه
ستا د پښو د ښکلولو، ما زړه چاودی په ارمان کړه
او که نه، ما له قرآنه، مرغلرې وي پېيلې
مسلمان ته لار ښيلې، حق وينا مي وي ويلې
نو بيا ستا احسان دی داسي، ذره کړي له لمره تېره
د وينا په مزدوری کښې، ستا يوه دعا ده ډېره
غني خدای ته لاس کړه پورته، چي زما وړی شړی کړي
چي مي عشق او عمل دواړه، يو تر بل غاړه غړی کړي

ناقراره روح يې راکړو، دا منم چې لوی دولت دی
د دين علم يې هم راکړو، دا منم چې لوی عزت دی
خو زه داسي لوږې غواړم، چې ملا و تړم عمل ته
چې زما نیسان ګوهر شي، و رسي د بحر تل ته
چې راغلی یم دنیا ته، او په زړه کښې تل ارمان دی
چې لا نه دی رژېدلی، نو هغه لا بل ارمان دی
لکه زړه وي په سینه کښې، هسي دی پکښې آباد دی
د ژوندون د سحر راسي، د دې خونې خانه زاد دی
ما چې ستا نامه له پلاره، کله راسي اورېدلې
هغه راسي زما خونه، دې ارمان ده سوځولې
دا آسمان چې ځنګه ځنګه، زړوي او سړوي ما
د دنیا په دې تېکري کښې، لوبوي او رغړوي ما
دا ارمان مې زلمی کیږي، ورځ په ورځ لشه پیدا کا
دا زاړه شراب تېزیږي، ورځ په ورځ نشه سیوا کا
دا زما په خاوره پټه، تمنا ګوهر بلیږي
چې زما شپه تړې رڼه ده، دا یو ستوری دي ځلیږي
د پې مخو د ګل رنګو، سره ډېر یم اوسېدلی
د ګلګوت وېښته خوبانو، سره عشق یم لوبولی
ناست د ښکليو په ټولګې کښې، په نشو مې خوا سره کړه

د آرام بله ډیوه مي، په لمن وهلو مړه کړه
تندرونه را خطا شول، او زما رشه يې صفا کړه
په ډاکو پسې ډاکې وي، د زړه خونه يې تالا کړه
ولې دا زاړه شراب مي، په پيالۍ کښې لا پراته دي
دا له اوره ختې رزم، په ځولۍ کښې لا پراته دي
زما عقل بت پرست ؤ، ده زنار کړلو په غاړه
ده خپل نقش کښېښولو، ملك د روح مي لکه پاړه
په مودو۔ مودو موښې، په مغزو کښې زما شك ؤ
نه مي تلو له خشك دماغه، لکه رن-ګ ورپوري کلك ؤ
د يقين د علم چرې، ما يو توری نه ؤ وړی
زه د عقل او ګومان په، دنياګۍ کښې ځان وم سترې
بېګانه زما تيارې وې، تل د حق له رڼاګانو
بې نصيبه مي ماښام ؤ، د شفق له ځلاګانو
ولې ننه مي په زړه کښې، دا خبره وه پرته وه
ښه سنباله په سې-پ-ی کښې مرغلره وه پرته وه
آخر شور مي شو په زړه کښې، نارې پاڅېدې له خوبه
کاشې شوې ترمورګو مورګو، څاڅكي توی شول له څښوبه
اې چې زړه مي رڼا خونه، پکښې تل ستا محبت وي
زه به خپل ارمان ښکاره کړم، خو که ستاسو اجازت وي

چي په ژوند کښې يې عمل نه وي، نو هغه به لا څه وايي
جوګه نه يم دا ارمان مي، هم زما سره نه ښايي
زه چي نيت کړم د ويلو، حيا شرم مي ټول توی کړي
خو چي ستا شفقت ته ګورم، نيت مي پوخ او زړه مي لوی کړي
چي رڼا ترې ټول جهان دی، دغه ستا د رحمت شان دی
چي زه مړ شوی په حجاز کښې، دغه يو زما ارمان دی
يو مسلم چي بې له خدايه، نور له هر څه بېګانه وي
د زنار مزی پر غاړه، پروت به څو په بتخانه وي
که تمامه يې شي اوربشه، مرګ يې و وهي اورمېږ کښې
های ارمان! چي درمسال ب-ې، صورت ونيسي په غېږ کښې
دا زما هډونه خاوره، که شي پورته ستا له دره
دا بې خونده نن مي ځار شه، د صباح غوندي اختره
مبارك نښته دې ښار بل، ته پکښې وې له هغه نه
تورې خاورې يې رانجه دي، چي پکښې وه ستا مېشتنه
چي استوګنه د محبوب ده، هغه ښار دی چي ديار دی
دا وطن خوږ دی عاشق ته، ځنې ځار دی چي د يار دی
کړه اوچت او ځلېدلی، دا زما پرېوتی ستوری
د يو څلي جوګه راکړه، ماته ستا د دېوال سيوری

چي دا بې ټيکاوه زړه، مي ستا په خوا کښې په ارام شي
چي شي لړې لړځېدني، چي پاره زما قيام شي
چي فلك ته يو بړغ وکړم، چي اې! ګوره مي آرام ته
تا آغاز زما ليدلی، اوس مي وګوره انجام ته

پای